

# کونړ کې اردو د انحلال په درشل کې!

اسرائیل او هندوستان!

تبصره سیاسی

نهم کال، لومړۍ ګڼه، پرلپسې (۷۷) ګڼه، ربیع الاول (۱۴۳۶) هق، جنوري (۲۰۱۵) ز کال

داسلامي مقدساتو په سپکاوي به دلویدیځ شوم اهداف پوره شي؟

غــوره حکایت

ثبات و امنیت گمشده بشریت

در سوالله ﷺ دمیني په اړه دحافظ امام ذهبی رح ...

هیوادنۍ مینه

د کندز د جهادي چارو مسؤل ملا عبدالسلام بریالی له مورچل ...

نامتو مسلمان فاتحین

داسلامي تهذیب څو غوره بیلګې

امام أبو حنیفه رحمه الله دجرح او تعدیل دعلماوو ...






اتم کال لسمه، پرلپسې (۷۴) یمه ګڼه،
ذوالحجه (۱۴۳۵هـ ق)، اکتوبر (۲۰۱۴) ز

علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه

دامتیاز خاوند :

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر

شکور (شفق)

کتنپلاوی :

حسن خیل، ایوب صافی،
حسن زوی، حکمت بغلانی،
زبیر مسافر، حافظ سعید

تخنیکي چارې :

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه

مکاتباتي ادرس :

پته : کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر

E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

# لړلیک





# ګوډاګۍ اردو دانحلال په درشل کې!

دکابل غلامه اردو چې دامریکایانو په مشرۍ دلویدیځو جنرالانو په ګوتو متشکل شوي او دروزنې سربیره یې مالي لګښتونه او دانسجام چارې هم دامریکایي سلاکارانو په واک کې دي ،سربیره پردې داهدافو ټاکنه اونورې اړوندې چارې هم په بشپړډول ددوئ لخوا تنظیمیږي، خو ددې نه بله خطرناکه ربړه داده، چې ددې نام نهاده ملي اردو افسران ،صاحب منصبان او جنرالان په عمومي صورت زاړه کمونستان اودکمونیزم دفلسفي پیروان دي ،له بده مرغه هماغه ځوک نن بیا دکابل داردو په کلیدي پوستونو ګمارل شوي ،چې له کبله یې ښیراز افغانستان په ویرانه بدل اواوس هم ددوئ دجبر او ظلم له وجه لکونه افغانان دپردیسۍ او مهاجرت په ټاټوبي کې دکیږدیو لاندې پراته دي.

نن بیا دهیواد دخپلواکۍ علمبردار مجاهداو طالب دخونکار کمونست افسر او خادیست رحم وکرم ته موکل دی او داستنطاق اوزندان چارې یې، همدې خونکارو اسلام دښمنو ته محول شوي دي ،دنړیوالو نورمونو خلاف دکابل ملي اردو کې دغل ،شوکمار،په اخلاقي فساداتو مبتلا، چرسي، بنګي اود ټولنې ګرد استفراق شوي عناصر ځیره شوي او همداسې نا اهلو او وطن پلورونکیو ته دیو سپیڅلې هیواد برخلیک سپارل شوی ،چې نه شرعي کوایف احتواکوي او نه دوضعي او عرفي قوانینو ایجابیات !

د ګوډاګي اردو په جوړښت کې ،نه ديني هويت پام کې نيول شوی او نه قومي توازن او داهليت او محاربوي وړتيا لوړ معيارونه ،بلکې له پيله پکې روزونکيو اشغالګرو جنرالانو همدا روحيه دجلب او جذب لپاره بس بللي، چې جهاد ته ترهګري او مجاهد او دين پاله طالب ته دهشتګر ووايې ،او ديوخو ډالرو په بدل کې داسې دټيټو ظرفيتونو ناوړ کسان ديوې ملي اردو ! په بن بست کې وګماري ،چې د اسلام او هيواد دګټو پرځای د اشغالګرو ګټو ته د اولويت او اوليت حق ورکړي او په ولسي قضاياوو کې خپله بې طرفي کاملا نشي ساتلای !

دکابل دغلامې اردو همدا ټيټ او رالويدلې معيارونه او دکيف او کم همدا نا مناسب وجوهات ددې سبب شوي، چې ددې مصنوعي اردو دانحلال شيبې رالنډې شي او ترخپل ټاکل شوي ميعاد نه مخکې متلاشي او منحل شي ،همدا اوس همداسې راپورونه لويځو رسنيو ورکړي ،چې د۲۰۱۴ کال په ترځ کې دکابل ملي اردو له ليکو څخه شاوخوا (۳۰۰۰۰ )زره تنه عسکر تښتېدلي دي.که ديوې خوا دا وجوهات ددې پرديپالې اردو دتيښتې لاملونه بلل کيږي، نو دبلې خوا دمجاهدينو زيات جنګي عمليات او محاربوي پرمختګونه هم ددې پيښو کې عمده لاملونه دي.

دکابل داردو دتيښتې او انحلال خبرپه دې وروستيو کې لويديځو رسنيو دامريکايي اطلاعاتي مرکزونو په حواله ورکړی دی، چې په ۲۰۱۴ کال کې زرګونه عسکر دکابل دملي اردو له ليکو څخه تښتېدلي دي ويل شوي، چې دکابل ملي اردو دعسکرو شمېر اوس يو لک ۷۵ زرو ته راښکته شوی دی، په داسې حال کې چې دغه شمېره يولک ۹۵ زره وه.

په دغه راپور کې دبهرنيو اشغالګرو دعمومي قومندان(جنرال جوزف اندرسن )له قوله ويل شوي، چې د۲۰۱۴ کال تر اکتوبر مياشتې پورې دکابل ملي اردو ۲۰ سلنه منصبونه خالي پاتې وو، چې دنومورې په خبره بايد ډک شوي وای.په راپور کې د(جوزف) له خولې راغلي، چې داخلي عسکر بې مهارته او بې ظرفيته دي، نوموړي ويلي، چې دکابل دملي اردو له ليکو دعسکرو تيښته او دغو ليکو ته دزياتو عسکرو نه راتلل ،دده په خبره يوه ستره ستونزه ده.

دافغانستان پرګټې چې غوڅ اکثريت يې داسلامي اردو او لوړو ظرفيتونو باندې متشکله اردو غواړي ،داوسنۍ ګوډاګي اردو څخه ددې تمه هيڅکله نه لري ،چې دابه يې ددين ،وطن ،ناموس او بالاخره دځانونو ساتکونکي پوځ وي، بلکې دا اردو ورته دزړو کمونستو جنرالانو او غرب مشربه افسرانو دشتون په لامل يوه اجنبي او پردې پاله اردو ښکاري، او تمه لري چې عمر يې لنډ او ډېره ژر به منحل او ځای به يې يوه بې طرفه اسلامي اردو جوړه شي ! انشاءالله تعالی

خلیل.عزیز

# اسرائیل او هندوستان!

په هندوستان کې د(نارندرامودی ) واک په رسیدو ، تربل هروخت زیات داسرائیلو او هند ترمنځ اړیکي تودي او مهم پړاو ته رسیدلي ، تردې پورې چې دسیمي اوچارو کارپوهان وایي

، دهند اوسنی ړومبی وزیر هڅه کوي په نړیوال ډګر کې دفلسطین په ځای نور داسرائیلو ملاتړ ته ترجیح ورکړي.

دهند اوسني صدراعظم له اسرائیلو سره خپله دوستي نه پټوي ، په دې ورستیو کې یې په خپلې شخصي ټویټر پاڼي کې اسرائیلي ولس ته دیهودانو د( انوار ) په نامه دخوښی دورځي له امله په عبراني ژبه دمبارکي مراتب وړاندې کړي ، په داسې حال کې چې دیوه هیواد لوړ پوړی چاروا کی کوم بل هیواد ته دمبارکی الفاظ او ټکي له خپلې رسمي ژبي پرته نه وړاندې کوي ، په مقابل کې داسرائیلو صدراعظم نتانیاهو هم مودي ته دمنني ټکي په هندي ژبه کارولي.

دهاآرتص په نامه اسرائیلی ورځپاڼي په دې ورستیو کې دهغه هیواد دړومبي وزیر له قوله لیکلي چې دوی په اسیا کې له هند څخه بل نیږدې دوست او ملګری نلري ، همدغه دلیل دی چې اسرائیلو مناسبه بللي چې له هند سره داسې یو ستراتیژیک تړون ولري چې عنوان یې د (اسلامي افراطیت او اسلامي بمب ) ځپل دي.

هندی سرچیني وایی چې ددوی ړومبی وزیر مودي چې کله په ګجرات کې په ۲۰۰۶ کې والي وو ،اسرائیلو ته یې څوځله سفرونه کړي ، دمودي او اسرائیلو ترمنځ داړیکو پیل له هماغه وخته پیل شوي

د( نشنل انټريست ) په يوه راپورکې چې دامريکا دبلفر دنړيوال مرکز دنامتوسياسي خيړونکي ( جاييتا سرکار) په قلم ليکل شوی داټکي راغلي: له اسرائيلو سره دهند رابطه له تيرو شپږو لسيزو راهيسي روانه ده ، که څه هم تريوې مودې ، هند دفلسطين په موضوع کې اسرائيل ګرم بلل ، خو دشوروي اتحاد له نړيدو ورسته ، هند له اسرابيلو سره داړيکو دتوديدو خواته تمايل پيداکړ، ويل کيږي چې لدې وړاندې پخوانی شوروي اتحاد دهندوستان دتسليحاتي اوپوځي اړتياوو دپوره کولو اوخريداری يواځينی هيواد اوبازار وو.

تيرکال دسپتامبر په مياشت کې داسرائيلو ړومبي وزير نتانياهو او دهندو نوي صدراعظم( نارندا مودي ) په نيويارک کې سره وليدل ، دواړو لورو د۱۴۴ ميلونو ډالرو په ارزښت دباراک ، په نامه دهغه توغندي دنورپيشرفت او عصري کولوباندي قرارداد لاسليک کړ چې دواړو هيوادونو په ګډه جوړ کړی او په بريااليتوب سره يې ازمايلی هم دی ، نوموړی توغندی چې اوس دهند دبحريه ځواک مربوط شميرل کيږي به بيړيو نصبيږي دUAVs په نامه دجنګي الوتکو دتوغنديو اونورو اړونده ګواښونو په مقابل موثر رول لوبوي ، ويل کيږي چې دنوموړي توغندي دجوړولو لپاره هندوستان په ۲۰۰۲ کال له اسرائيلو سره د۱.۱ ميليارډالرو په ارزښت قرارداد لاسليک کړی وو ، راپورواييي چې دنوموړي توغندی نوره اوپاتی عصري برخه به تر۲۰۱۷ کال پوري تکميل کړل شي.

ددې ترڅنګ دهند صدراعظم په ډيره لړه موده کې له اسرائيلو سره د۶۲۲ ميلونو ډالروپه ارزښت په پوځي او اقتصادي برخو کې دراکړې ورکړي توافقات هم لاسليک کړي

له اسرائيلو سره تنها مودي ندی چې تودي اړيکي پالي اومتهي ورته بدوهلي ، له هغه وړاندې واکمنو هم په دې برخه کې هلې ځلې کړي ، دهند پخوانی ړومبي وزيرجواهرلعل نهر دساره جنګ په ابتدايي شپو ورځو ۱۹۵۵ کې دباندونګ په نامه کنفرانس کې دشرکت لپاره اسرائيلو ته بلنه ورکړه ، جواهر لعل نهرو دنوموړي کنفرانس دجوړولو ديوه مبتکرپه ډول ځانته داحق ورکړی وو چې اسرائيل هم دهغوهيوادونو په کتار کې چې تازه تاسيس شوی کنفرانس ته راوغواړي ، ځکه په نوموړی کنفرانس ډيری هغو هيوادونو ته بلنه ورکړل شوی وو چې تازه داستقلال خاوندان شوي وو

خو عربي دنيا او داسلامي هيوادونو مشران داسرائيلو له شرکت سره کلک مخالفت وښود اونهرو يې له خپل دريځ څخه واړاوه.

نوموړی کنفرانس چې داسيااو افريقا ياافريقا او اسيا دکانفرانس په په نامه يادشوی ، هغه لوی کنفرانس وو چې په ۱۹۵۵ ميلادي کې د۲۹ هيوادونو دمشرانو په شرکت داندونيزيا دباندونګ په ښار کې ترسره شو ، مهمه موخه يې داسيايي اوافريقايي هيوادونو ترمنځ داقتصادي

او فرهنګي ګډو هڅو تینګښت او د استعمارګرو هیوادونو په وړاندې دیو اواز اوچت ول وو.

دغه ډول کله چې په ۱۹۷۱ کال دهند په مرسته بنګلدیش له پاکستان څخه لار بیله او ځان مستقل هیواد اعلان کړ، اسرائیل له هند ورسته ړومبی هیواد وو چې بنګلدیش یې په رسمیت وپیژاند.

په ۲۰۰۳ میلادي کال کې دهند دملي امنیت مشاور (براجیش میترا) امریکا ته دسفر په ترڅ کې دیهودانو یوې لویې غونډې ته وویل: اوس ددې وخت رارسیدلی چې په اصطلاح دهغو اسلامي افکارو او یاهیوادونو په خلاف چې ددوی په اند افراطیت خپروي، دامریکا، اسرائیلو او هندوستان له لوري په ګډه او مشترک ډول مقابله وکړای شي.

همدغه دلیل وو چې امریکا په ۲۰۰۹ کال له هندوستان څخه وغوښتل چې نور باید هند دروسیي په ځای دپوځي اړتیا وو دترلاسه کولو لپاره اسرائیلو ته مخه کړه، ځکه اسرائیل ددې صلاحیت لري چې دهندوستان ټولي پوځي اړتیاوي پوره وکړځوي.

کارپوهان باور لري چې له اسرائیلو سره دهندوستان ددومره تودو او مهمو اړیکو دبرقرار ساتلو علت دپاکستان داتومي او هستوي وسلو پیشرفت بولي چې نوموړي هیواد په کمه موده کې په دې برخه له اټکل نه زیات ځغل وکړ، همدارنګه دپاکستان او عربي هیوادونو ترمنځ ستراتیژیکي اړیکي هم اسرائیل دیته اړ ایستلی چې له هند سره اړیکي وپالي.

## جهاد: دګناهونو دمغفرت او جنت ته دتلو تر ټولو غوره لاره

عن ابي هريرة رضي الله عنه قال، قال: رسول الله صلى الله عليه وسلم: الاتحبون ان يغفر الله لكم ويدخلكم الجنة؟ قالوا بلى. قال فاغزوا. سنن ترمذي: ۱۰۲\۳ والحديث حسن*

ابوهریره (رض) وایي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ایاتاسې دانه خوښوئ چې الله جل جلاله درته بخښنه او مغفرت وکړي او جنت ته مو داخل کړي؟ هغوی وویل: ولې نه، خوښوویې. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: بیانوغزاوکړئ.

تشریح: که یوتن ډول ډول ګناهونه کړي وي، او غواړي چې دغه ګناهونه یې وبخښل شې، یاغواړي چې تر ټولو دعزت په مرګ دالله تعالی حضورته ورشې، یاغواړي چې دقبر او حشر او جهنم له عذابو څخه په امن کې شې، یاغواړي چې جنت ته ولاړشي او دجنت نعمتونه یې په برخه شې نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم ورته هدایت کوي: چې غزاء یعني دالله تعالی ددین دساتني لپاره جهاد ته ولاړشئ، ځکه دجهاد په لاره کې که دیوه تن په بدن باندې غبار ولګیږي نود جهنم اور ورباندې حرامیږي، اودمجاهد وینه، ویده، ناسته، ولاړه، خوراک، څښاک، اوهرڅه باندې اجر او ثواب ورکول کیږي، اوګناهونه یې رژیږي. نو دالله تعالی په لاره کې دهغه ددین دساتلو، راوستلو او تطبیق کولو لپاره جهاد کول یادکفارو اودهغوئ دملګرو شوکة ماتولو او شړلو لپاره جهاد کول دانسان دټولو ګناهونو دبخښني او جنت ته دتلو تر ټولو غوره لاره ده

# تبصره سیاسی

## اشغالگران به نیروهای دست نشانده، تنها کشتن و شکنجه کردن را آموزش داده اند !

اشغالگران آمریکائی و ناتو تحت عنوان نیروی امنیتی یک گروه از اوباش ها را در افغانستان گردهم آورده و نام های اردو و پولیس ملی را بر آنان نهاده است، که این عمل را بزرگترین دست آورد سیزده سال تجاوز و اشغال ناروای خود میدانند. نیروی مذکور بر اساس و روحیهء تعهد و حفاظت از ارزشهای دینی و افتخارات ملی ایجاد نه گردیده و نه هم برای این اهداف تعلیم و اموزش داده شده اند ! اینها برای نجات و حفاظت از سرزمین و استقلال افغانستان تشکیل نشده اند، حتی در این تشکیل، توان اقتصادی کشور را در نظر نگرفته اند.

حقیقت آشکار اینست که کشور ما توان تهیه اسلحه، البسه، اعاشه و اباتهء چهارصد هزار تن را ندارد، بلکه بودیجهء تمام کشور، نصف مصارف نیروی حاضر را پرداخته نمیتواند، و سخن واضح دیگر اینست که هیچ شخص و گروهی حاضر نیست که برای رضای خداوند جل جلاله با ما در این بخش همکاری داشته باشد،

اینها تنها اشغالگرانی هستند که بخاطر اهداف استعماری خویش میتوانند و میخواهند این مصارف هنگفت را

پرداخت کنند. پس بصورت واضح، مشخص است که این نیروی مزدور در حقیقت برای تحقق اهداف اشغالگران و بخاطر محتاج و گرسنه نگه داشتن ملت افغان ایجاد گردیده است.

مصیبت بزرگ دیگر اینست که به این نیروی اجرتی هیچگونه تربیهء علمی و اخلاقی داده نشده است، و افرادی را در ان گردهم آورده اند که بغیر از جنگ و کشتن، چیز دیگری را نمیدانند، اکثریت انان قدرت سالاران، جنگ سالاران، تفنگ سالاران، کمونیست ها و افراد اوباش و بی بند و باری هستند که این نیرو نه کدام نظم و دسپلین دارد و نه هم توان و مورال مقابله در مقابل تجاوز بیگانگان. برای اینها تنها طریقه و روش استعمال سلاح و ترساندن ملت خود را تعلیم و آموزش داده اند. برای کشتن و شکنجه کردن افغانها چنان روش ها وطروقی را آموزش

داده اند که هیچگونه همخوانی با حقوق بشر و اخلاق اسلامی ندارد.

از روزیکه اشغالگران پایان ماموریت دروغین جنگی خویش را اعلام کردند، از همان روز این نیروی مزدور دست به جنایات جنگی زده است، خوشحالی ها و مراسم عروسی ها را به غم و ماتم تبدیل کرده، مردم را در سرمای زمستان مجبور به ترک منازل و خانه های خود کرده اند، در بعضی از مناطق دروازه های مسجد را بر روی نمازگزاران بسته اند، خانه ها و منازل مردم فقیر را آتش زده اند، و جنایات بیشمار دیگر از این دست که داستانهای وحشت و مظالم سیزده سالهء اشغالگران از یاد ملت مظلوم رفت.

بطور مثال میتوان از حادثهء اخیر در ولایت فاریاب یادآوری نمود که بتاریخ اول فبروری ۲۰۱۵ میلادی بوقوع پیوست، طبق راپورهای موثق این نیروی کثیف در منطقهء نهرین ولسوالی قیصار ولایت فاریاب خانه ها و منازل بیش از دوصد تن از مردم ملکی و باشندگان محل را آتش زده و سوزاندند که بشمول یک زن و یک کودک چهار تن در آن بشهادت رسیدند. همهء اینها حوادث دردناک و اسفناک در حالی انجام شد که نه کسی فریاد کمک و دادخواهی آنها را شنید و نه هم از کمک و حمایت خبری بود، حتی رسانه ها نیز در این مورد کوچکترین جمله ای ننوشتند.

امارت اسلامی افغانستان از ملت مجاهد خویش میخواهد که این آخرین دسیسهء اشغالگران را نیز خنثی سازند، هر خانواده و هر قوم بر اساس مسئولیت سنگین خود که در مقابل دین مقدس اسلام و سرزمین پاک افغان دارد، به فرزندان خود، اهداف و مقاصد شوم و ناروای اشغالگران را بیان و واضح سازند و جوانان مناطق خود را از صفوف اردو، پولیس و اربکی بیرون کنند، تا از ذلت و رسوائی دنیوی و اخروی نجات یابند

## د روژې میاشت کې د نفلونو ثواب :

له ابوسعید الخُدرِي رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : کوم مؤمن چې د روژې د میاشتې په کومه شپه کې لمونځ کوي نو د الله تعالی له لوري به په هره سجده باندې یو زر او پنځه سوه ۱۵۰۰ نېکۍ ور کول کېږي ، او په جنت کې به یو کور ورته جوړېږي ، دا کور به له یوې سرې ملغلرې څخه جوړ وي ، (دومره لوی) چې شپېته زره دروازې به لري ، د دې هره دروازه به یوه د سرو زرو ماڼۍ (قصر) لري ، دا قصر به په یوه سره ملغلره باندې ښایسته شوی وي.

چې کله د روژې د میاشتې اوله روژه ونیسي نو ټول مخکني گناهونه او هم هغه چې تر بل رمضانه پورې یې کوي – وبخښل شي .

او په هره سجده باندې به د ورځې یې وکړي او که د شپې – په جنت کې دومره یوه لویه ونه ورته کېښودل کېږي چې په اس سپور سړی به یې په سوري کې پنځه سوه کاله مزل کوي . (البیهقي في شُعَب الإیمان )

له سلمان رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د شعبان په وروستۍ ورځ کې مونږ ته په وینا کې اوفرمایل : ای خلکو ! تاسو ته ډېره ستره او مبارکه میاشت را ورسېدله ، داسې میاشت چې پدې کې یوه شپه ده چې له زرو کلونو څخه غوره ده ، د دې میاشتې روژه الله جل جلاله فرض کړې ده او دشپې قیام نفلونه یې سنت گرځولي دي ، څوک چې پدې میاشت کې یو نېک کار وکړي (لکه نفلونه او نور) دومره ثواب لري لکه فرض یې چې کړي وي ، او څوک چې فرض پکې وکړي هغه دومره ثواب لري لکه اویا ۷۰ وارې یې چې کړي وي ، (یعني نفل یې د فرضو ثواب لري او فرض یې د اویا فرضونو) (صحیح ابن خُزیمة )

# داسلامي مقدساتوپه سپکاوي به دلویدیځ شوم اهداف پوره شي ؟

حسن زوی

دمرغومي په ۱۲ نېټې چې دجنورۍ د۷ مې نېټې سره یې سمون خوري دفرانسې په پلازمېنې پاریس کې دچارلي هیبډوپه نوم دهغې مجلې په مرکزي دفتر ۳ فرانسوي مسلمانوځوانانووسلوال برید وکړ کومې چې پدې وروستیوکې یوځل بیاداسلام دستر پیغمبرلوړشان ته دسپکاوي په موخه کارتونونه خپاره کړل .

دابرید چې پکې په یوځل د۲پولیسو په شمول ۱۲ فرانسویان ووژل شول په تېرو ۴ لسیزو کې دفرانسې په تاریخ کې بې ساري اوترټولوخونړۍ حمله ګڼل شویده .

په زړه پورې حسن تصادف دا وچې دحملې پرمهال د مجلې په دفتر کې غونډه روانه وه او وژل شوي تنان ددې لپاره سره راټول شوي ووچې په مستقبل قریب کې یوځل بیا دکاریکاتورونو خپرولو لپاره پلان جوړ کړي چې دوه ورونه شریف اوسعید کواچي دفترته په ورننوتلو بریالي شول ؛دننوتلو سره سم یې دالله اکبرناره پورته کړه ؛ ترټولوړومبی یې دلته په امنیت ګومارل شوي دوه پولیس ووژل ؛ بیا یې په ناستو کسانوکې دهریونوم واخستلو اوپه ډېرې اسانۍ دمجلې دمدیرستیفن کاربونیرو؛ دکارتونونو جوړونکو هریو کابو،ټکنوس ، وولنسکي اودبرنارډمارس نومي جورنالست پروژلو وتوانېدل ؛ دټولو دوژلو نه پس یې بیا دالله اکبر ناره پورته کړه او ویې ویل موږ دخپل پیغمبرپه شان کې دسپکاوي انتقام واخستلو؛ بیاله دفتره راووتل ؛ دوئ او بیرون په پیره ولاړدریم ملګری یې په موټر کې کېناستل اوله سیمې نه په روغ رمټ وتلو کامیاب شول ؛ دې ټولوعملیاتوایله پنځه دقیقې وخت واخست خوچې دفرانسې په ځېرهېواد کې ترسره شول نو کابوپه همدومره وخت کې پولیس هم دپېښې ځای ته راورسېدل اوددوئ دنیولوهڅې یې هم وکړې خو دپولیسوهغه موټرچې ددوئ پسې شوی و دوئ ته په ورنېږدې کېدو پرې دوئ ډزې وکړې چې له امله یې دمخې شیشه ورماته اوپه موټر کې ناست پولیس یې له دې وویستل چې نوردوئ تعقیب کړي

سعید اوشریف چې دواړه سره ورونه دي په ختمه عربان خوپه فرانسې کې زېږېدلي اوراستر شویدي اوهمدلته یې زدکړې ترسره کړیدي .

دفرانسې دولت وایې چې دامنیتي ځواکونو دپرلپسې لټون په نتیجه کې دحملې نه ۲ ورځې پس سعید اوشریف وموندل شول اودواړه دامنیتي ځواکونوسره په وسلوالې نښتې کې ووژل شول .

دزمانې بدنامه چارلي هیبډونومي مجله چې په ۱۹۷۰م کې تاسیس شویده مرکزي دفتریې په پاریس کې دی؛ داکومه علمي ؛ ادبي ؛ سیاسي یا مذهبي مجله نده نوځکه کم لوستونکي لري ؛په اروپاکې یې خاصه طبقه لولې اوتیراج یې

ایله ۲۰ زروته رسیږي؛ دلنډغرو یوه ډله یې چلوي ؛ خلکو پسې دټوکو، خندا اودخلکوله سپکاوي پرته یکې دکاربل هیڅ شی نه خپرېږي ؛ دخپل وجود نه ترننه دې مجلې دګڼونامتو اوتاریخي اشخاصو سپکاوی کړیدی چې داکار نه یوازې داچې دبیان ازادي اوسم کاریې بولي بلکې دځان لپاره یې افتخارهم ګڼي ؛ دامجله په همدې کارونو ځوځلې بنده شوې اوپه خپرېدا یې بندیز هم لګېدلی دی .

دې مجلې له دې وړاندې په ۲۰۰۶ ،په ۲۰۱۱ او۲۰۱۳ کې هم دستر پیغمبر په شان کې دسپکاوي نه ډک کارتونونه خپاره اودټولې نړۍ دمسلمانانو زړونه یې سخت دردولي چې هرځل یې پرضد دنړۍ په ګوټ ګوټ کې مسلمانانو خپله کرکه ښکاره کړې اواسلامي نړۍ دخپل غم اوغصې داظهار ترڅنګ دمجلې مسئول مدیر ته دسزاور کولواودمجلې دبندولو غوښتنه هم کړې خو دفرانسې په شمول ټول لویدیځ هرځل دسخت تکبرنه کاراخستی اود مسلمانانو دې غوښتنې ته یې هیڅ توجو نده کړې چې دې کارمجلې ته دټول لویدیځ له لورې دډاډ معنی لرله نوځکه مجلې نه یوازې داچې په خپلو کړویې کله پښېمانتیانده ښکاره کړې اونه یې دمسلمانانو نه ښښنه وغوښتله بلکې دمجلې مسئول مدیراو کاریکاتورجوړونکوخپل دې کارته هرځل ددوام ورکول اعلان کړي ؛ بیاخبره د مجلې په دفتر دډزو اوبمي بریدونو هم رسېدلې ده خودمجلې اداره پدې هیڅ هم دخپلو شیطاني کړنونه ، نه وه لاس په سر شوې تردې چې پرضد یې هغه څه ترسره شول څه چې پکار وو.

سره له دې چې یاده مجله کومه نامتونشریه نه وه اونه هم داپیښه څه ډېره ستره پېښه وه خوداچې لویدیځ ته خپل لېږڅه هم ډېرارزښت لري اوحمله کونکي مسلمانان وونودمسلمانانوپرضد دخپل یووالي دښکاره کولو، دمجلې دشیطاني کړنو دتائید اوپرې دشوې حملې دغندنې په موخه ټوله لویدیځه نړۍ په خوځښت راغلی ده ؛ دامریکا دولسمشر بارک اوبامانه ترالمانې مشرې انګېلامرکل اودبرتانې دلومړي وزیر ډېویډ کامرون نه تراروپایي اتحادې مشر کلودیونکرپورې ټول دخفګان په ښکاره کولو اودفرانسې اودهیبډومجلې سره دغم په شریکولو کې اخته دي اوټول په یواواز دادبیان پرآزادۍ حمله بولي .

پدې اړه په پاریس کې ډېرستر لاریون رامنځته شو چې دغربي میډیاپه ویناپکې له ۳ ملیونونه زیاتو وګړو شرکت کړی و( په حقیقت کې که هرڅومره ووخوددوئ نه څوک پوښتنه کوي چې ۳ملیونه دي اوکه ۳ لکه ؟ )اوداد پاریس په تاریخ کې بې ساري لاریون و چې دبرتانې ولسمشر ډېویډ کامرون ؛ دالمان مشرې انګیلا مرکل ، داسرائیلو لومړي وزیرنتن یاهو، دفلسطینې اداري مشر محمود عباس اوداردن مشر شاه عبدالله اودلویدیځ دنوروهېوادونو په شمول یې د۴۰ هېوادونومشرانو قیادت کولو.

دیادولو وړده چې دې لاریون ته دسپکاوي په موخه دجوړو شویو کاریکاتورونو عکسونه هم راوړل شوي وونوځکه خو احتجاجاً دمراکش دباندنیو چارو وزیر پدې لاریون کې دګډون کولو نه انکار وکړ.

اسلام دفرانسې دوهم ستر مذهب دی ؛ دلته ۷ ملیونه مسلمانان ژوند کوي پدوئ کې دزیاترو تړاودمراکش، الجیریا ،تیونس اونوروهغوهېوادونوسره دی کوم چې یو

وخت دفرانسې تر استعمارلاندې وو خوپدې هېواد کې دنويو مسلمانانو شويو مسلمانانو شمېره هم ښه زياته ده ؛ ځکه چې فرانسه داروپاهغه هېواد دی چې اسلام پکې په ډېرې تېزۍ خپرېږي ځکه خونورلويديځ په پرلپسې ډول دا انديښنه ښکاره کوي چې شايد ځولسيزې پس داهېواد په اسلامي هېوادبدل شي چې په پرله پسې ډول دکارتونونودخپرېدا يواساسي لامل هم همدا داسلام دتېزخپرېدا دمخنيوي هڅې دي .

په ټوله کې ټول لويديځوال دتېرې يوې لسيزې راهيسې داسلام وېرې پسې اخستي دي اوداکثريت يې دايقين دی چې اسلام ددوئ دکلتور لپاره ورو ورو په لوی خطربدلېږي ؛ لويديځ دا وېره ښکاره کوي چې که داسلام دسونامي مخه ونه نيول شي نوټول لويديځ به له ځان سره لاهوکړي نوځکه نوي نوي قوانين جوړوي اوهرهغه اقدام کوي چې وربانديې داسلام اومسلمانانودپرمختګ مخنيوی کېدای شي.

موږبايدداومنوچې دا وېره تر يوحده پرځای ده چې په ټولولويديځوالوکې اوس خپره شوې هم ده خوله بده مرغه چې پکې له ډېرې مبالغې کاراخستل کېږي ځکه چې وېره خپرونکي بل څوک نه بلکې يهودان دي او يهودان چې د دوهم نړيوال جنګ نه پس يې په امريکا او داروپا په اکثرو هېوادونو کې د مسلمانانو په پرتله شمېره زياته وه اوس چې د نورو نامسلمانانو په څېر په يهودي مېرمنو کې هم د بچو نه راوړلو او يا ايله د يو يا دوه بچو راوړلو طرف ته ميلان زيات شوی نو د يهودانو نسلونه ورو ورو کمېږي بل دا چې يهوديت نا دعوتي مذهب دی يهودان د هندوانو په څېر هيچا ته د يهودي کېدلو دعوت نه ورکوي او نه هغه څوک يهودي کېدای شي چې پلار او مور يې يهوديان نه وي نو يهودان زياتېږي نه بلکې کمېږي خو برعکس په امريکا او اروپا کې مېشتو مسلمانانو کورنيو کې د کوچنيانو پېدايښت زيات دی اوترڅنګ يې اسلام د دعوت والا دين دی چې داسلام ددښمنانودټولو کوښښونو ؛دسيسو ؛ مکرونو اوپوچو تبليغاتوسره سره هم اسلام يواځنی هغه دين دی چې ښه په تېزۍ سره په اروپا او امريکا کې خپرېږي او په لويه پيمانه پکې د يهودانو په شمول نا مسلمان را داخلېږي .

دګالوب نومي امريکايي اداري دعامو نظرونو دڅېړنيز مرکزله لورې د۲۰۰۸ کال په خپروشويو اعدادواوارقاموکې ښه په ډاګه ښوول شوي وه چې دا دين په نړۍ کې تر بل هرمذهب زيات خپرېدونکی دی ؛ ددې تر څنګ دا اعتراف هم شوی وچې ټولې هغه هڅې چې داسلام او مسلمانانودبدنامولو اوپه نړۍ کې يې دناوړه معرفي کولولپاره په کار اچول شويدي دماتې سره مخامخ شويدي .

ددې ترڅنګ چې په لويديځ کې دمسلمامانو نسل زياتېږي اوپکې زيات خلک اسلام کې راداخلېږي لويديځ ته د مسلمانانو راتګ هم زيات دی نو مسلمانان په غرب کې ورځ تر بلې زياتېږي .

يهودان په لويديځ کې خپل کمښت او د مسلمانانو تېز ډېر والي او د اسلام تېز خپراوی سخت ورخطا کړيدي نو ځکه د مسلمانانو سره د غربيانو د نفرت پيداکولو او په اروپا او امريکا کې د اسلام د خپريدا د مخنيوي لپاره مسلسل ناپاکه پلانونه جوړوي او په ډېر چل او هنر دلويديځ متعصب پاپان او سيکولر مشران د خپل هدف د تر سره کولو لپاره د

آلې په توګه کاروي ؛ په نړۍ کې داسلام اومسلمانانو بدنامول دهدف دترلاسه کولولپاره ددوئ ډېره کامیابه اواسانه وسیله ده ځکه چې پر نړیوالورسنیو چې دیهودوقبضه ده نودنړۍ په ګوټ ګوټ کې پر مسلمانانوشویو اوروانو ظلمونو اووحشتونوباندې پردې رااچوي خوبرعکس داسلام اومسلمانانوپرضد پکې ډېر زهرجن اومنفي تبلیغات خپرېږي ؛ اسلام نړۍ ته دوروسته پاتي ؛ دېر مختګ ضد دتشدد نه ډک ،ظالم اوجابرداسې دین په صفت معرفي کوي چې یواځې قتل وقتال اودانسانانو وژلوته خپل منونکي هڅوي؛ نه په چارحم لري ؛ نه پکې دانسانانودحقوقولحاظ شته اونه هم بشریت ته احترام لري .

دلویدیځ پلیته میډیا چې پدې پوهېږي چې مسلمانان دخپل پیغمبر ،خپل کتاب قرآن عظیم الشان اوخپل دین سره دومره مینه کوي چې ورنه دخپلو ځانونوجارول دخپلوځانونولپاره سعادت ګڼي نوپه منفي اوزهرجنوتبلیغاتو یې بسیا ونکړه بلکې ددې لپاره چې دنړۍ دمسلمانانوزړونه پرهر پرهراوپه پرهرونویې مالګې ودوروي د اسلام ،قرآن اوداسلام ستر پیغمبرته یې دسپکاوي داسې ناوړه اوناولې لړۍ پیل کړه چې په ښکاره یې دتم کېدلو هیڅ نښې نه ښکاري او وروستۍ کړۍ یې دچارلي هیبډونومي فرانسوۍ مجلې له لورې داسلام دسترپیغمبر دسپکاوي په موخه دکاریکاتورونو دخپرولوخورامذموم عمل دی چې په مقابل کې یې عکس العمل هم ټولې نړۍ ولیدلو؛ د کارتونونو جوړول ، پر حجاب بندیز ؛ د جوماتونو د منارو رنګول ؛ د قرآنکریم بې حرمتي ؛ اوس بیا دکارتونونوجوړول او د اسلام او مسلمانانو پرضد دنورو ورته ټولو اقدامونو تر شا د یهودانو لاس دی ، چې د یاد شوي هدف د تر لاسه کولو لپاره ترسره کېږي او د سیکولرزم مخکښان او متعصب عیسوي مشران پدې لارکې داسې استعمالیږي چې دبشري حقوقودساتنې ؛ انساني مساوات اودانسانانو عقایدو ،مذاهبواولوړواشخاصوته احترام ټولې دعوې یې هېرې وي.

خو پوښتنه دا ده چې آیا یهودان او متعصب جاهل پادریان او پاپان به ګینې په ورته اقدامونو خپل دې هدف ته ورسیږي او د اسلام اود اسلام د تېز خپراوي مخه به ونیسي؟

حقیقت دا دی چې سیکولرزم ( د خدای او دین نه انکار) په نړۍ کې خپلې ریښې ډېر مصبوطی کړیدي او ټولې نړۍ ته په ډېرې تېزۍ خپرېږي چې له دې امله د اسلام پرته ټول مذهبونه د ورکېدو پر لور روان دي ،په امریکا او نورو لویدیځو هېوادونو کې د چرچونو مذهبي مشران له دې ډېر زیات سرټکوي چې چرچونو ته څوک په اوونۍ کې یو ځل یانې د یکشنبې په ورځ هم نه راځي ، په زرونو چرچونه داسې دي چې د خلکو د نه ورتګ له امله ورته قلفونه وراچول شوي او څه موده پس بیا مسلمانانو د جوماتونو لپاره اخستي دي ، د عیسویت د ژوندي ساتلو او مسلمانانو د مرتدو کولو لپاره هر کال په میلیاردونه ډالر لګول کېږي خو نتیجه یې صفر ده او پدې اړه چې د مثبتو پایلو کوم خبرونه خپرېږي پخپله لویدیځوال حق ویونکي پوهان هم وایي چې پدې کې ٪۹۰ خبرونه په دروغو ولاړ دي چې د چرچ مشران له دې لارې د بډایو عیسویانونه په میلیاردونه ډالر وهي او بس .

په لویدیځ کې چې کوم تنان سیکولرندي بلکې په خدای ایمان لري په هغوئ کې ډېر کم د مذهب په اړه معلومات

لري ؛ کله چې د رسول الله صلی علیه وسلم یا د قرانکریم د بې حرمتۍ یاد منارو رنګولو او یا پر حجاب د بندیز په څېر د اسلام ضد ناپاکه پلان یا پېښه رامنځته شي نو مذهبي لاربښونو نه دا بې برخې تنان بیا د اسلام مطالعه پیل کړي قرآن ولولي او پدې پوه شي چې د اسلام او قرآن لاربښوونې د سلیم فطرت سره برابرې دي د انساني ټولنې لپاره د خیر ،برکت ، امن ، سکون ، خواخوږۍ او ورور ګلوۍ نه ډکې دی نو دا تنان بیا په ډېر شوق مسلمانېږي چې یوه کوچنۍ بېلګه یې په ګراون زیرو کې دمسجد دجوړېدوپه سرد راپورته شوی شخړې پرمهال په واشنګټن ډي سی کې د ۱۸۰ تنانو مسلمانېدل دي ؛ د امریکا دپلازمینې واشنګټن ډي سي په ګراون زېرو کې چې د مسجد د جوړولوپرېکړه شوی وه نو دیهودو په لمسون یې دپاپانوله لورې مخنیوی هڅی پیل شوی وې او ټیری چونز نومي بدبخته پادري خو د قرانکریم د څو نسخو د سوځولو اعلان هم کړی وچې ددې اعلان او دمسجد دجوړېدودمخنیوي دهڅونه په لړو ورځو کې یوائې په واشنګټن کې ۱۸۰ تنانو اسلام قبول کړی و.

نو ټول لویدیځ او په ځانګړی توګه د یهودیت او عیسویت مذهبي مشران دې پدې پوه شې په کارتونو جوړولو ، د منارو رنګولو ، پر حجاب بندیز او د قرانکریم د څو نسخو سوځولو باندی په لویدیځ کې د اسلام د تېز خپراوي مخه نه شي نیول کېدای او نه پرې د اسلام رڼا تتېدای شي زموږ رب داسلام د غلبی وعده کړیده اوس چې نړیوال د بې دینۍ نه تنګ شویدی اسلام ته د رجوع وخت را رسېدلی دی ؛ که څوک غواړي او که نه اسلام به په ټولی نړۍ غالب شی ان شاءالله

## د پیغمبر صلی الله علیه وسلم له قافیې څخه

عن علي رضی الله تعالی عنه قال... اجود الناس صدرا ، واصدق الناس لهجة ، والینهم عریکة ، واکرمهم عشیرة ، من رأه هابه ، ومن خالطه معرفة احبه ، یقول ناعته لم اری قبله ولابعده مثله صلی الله علیه وسلم. رواه الترمذي مشکوة ص\ **۵۳۹**

ژباړه : حضرت علي رضی الله تعالی عنه چې به د پیغمبرصلی الله علیه وسلم بیان کاوه نوویل به یې : پیغمبرصلی الله علیه وسلم ترټولو جواد اوسخي ؤ ، اوترټولو رښتونی ، په طبیعت کې نرم ، اوپه قوم کې ترټولو عزتمند ، اوښه رویه کونکی ، کله چې به پیغمبرصلی الله علیه وسلم ناځاپي ولیدل شو نوخلک به تري په هیبت کې ؤ ، اوچې ورسره بلد به شوونوبیابه یې زیاته مینه وه ورسره. د پیغمبرصلی الله علیه وسلم مدح چې به کوم تن کوله نولنډ به یې داسې وویل: چې نه دهغه په څیر څوک لیدل شوی ،اونه به څوک په همدغه صفاتو وموندل شي.

ابو عبیده وایې چې مادربیع بنت معوذ څخه وپوښتل چې د پیغمبرصلی الله علیه وسلم په اړه څه راته ووایې: هغې وفرمایل: هی زویه که دي لیدلی وای نو یوختلی لمرؤ.

انس رضی الله تعالی عنه به ویل: نبي صلی الله علیه وسلم له رنګ څخه سپین ؤ ، خولي به یې په مخ داسې ښکاریدي لکه ملغلري ، چې کله به روان شو نوپه وړاندي به یې داسې قدم واهه لکه کښتۍ ، دوریښمو ترجامو د پیغمبرصلی الله علیه وسلم لاسونه ډیر پاسته اونرم ؤ .ماداسې مشک اوعنبرنه دي لیدلي چې دهغوئ دي د پیغمبرصلی الله علیه وسلم په شان خوشبویې ولري . متفق علیه. مشکوة **۵۳۹**




مجاهد وايي چې ابو هريره رضی الله تعالی عنه راته وويل چې په هغه ذات مې دې قسم وي، چې له ده نه په غير بل خدای نشته ، چې ما به ډير وخت دلوږې له کبله خپل نس او سينه له ځمکې سره لګوله، ددې لپاره چې کـه وکولای شم ،دځمکې په لوندوالي او سوړوالي دنس دلوږې ګرمي څه کمه کړم او ډير وخت به مې په نس پوري ډبرې تړلې،

يو ه ورځ دلارې پر سر کښيناستلم، په دې وخت کې ابوبکر رضی الله عنه تيريده، چې ما ورڅخه ديوه آيت مبارک پوښتنه وکړه او غرض مې دا و، چې هغه زما دا خوار وزار حالت ووينې او له ځان سره مې د ډوډۍ خوړلو لپاره بوځي، خو هغه مبارک ولاړ او زما په غرض ونه پوهيده !

همدا راز حضرت عمر رضی الله عنه تيريده ،ما ور څخه ديوه آيت مبارک پوښتنه په همدې غرض وکړه، خو هغه هم ولاړ.

څه وخت بعد ابو القاسم صلی الله عليه وآله وسلم (څوک چې لوی خدای دخيراوبرکت تقسيم کونکی را استولی )تيريده زما په ليدلو سره وپوهيد او ويې خندل، راتـه ږغ يـې کـړ، ای(ابوهريرة ) ماورته وويل يارسول الله لبيک !نو ده مبارک راته وويل:راځه له ما سره ولاړشه ،بس ورسره شوم، دا وو، چې کورته يې ورسيدو ،که ګورو ،نو په کورکې يې يوه دشيدو ډکه پياله پرته وه ،ده مبارک پوښتنه وکړه، دا لـه کومه شوې ؟ دکور والاوو ورته وويل:چې دافلانې تحفه در ته را ليږلې ده !

نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: اې ابو هريره !ورشه اصحاب صفه را وبوله !

ابو هريره وايي اصحاب صفه خو دا سلام ميلمانه ول، نه يې کوم کور درلود او نه هم مال ،غرض دا چې، ددوئ دا وسيدلو بل کوم ځای نه وو، رسول الله صلی الله عليه وسلم ته چې به له يو ځای نه صدقه راتله ،نو اصحاب صفه وو ته به يې

ور استوله او خپله به يې څه نه ور څخه اخيستل ،دا لدې کبله، چې ده مبارک ته صدقه اخيستل حرام وو او که به هديه راتلله ،نو ده به هم ور څخه څه قدري اخيستله او اصحاب صفه مبارکان به يې هم ورګډول ، دا وخت چې ده راته وويل ،چې ورشه اصحاب صفه هم را وبوله ،نو دا خبره پر ما څه داسې درنه غوندې شوله او په زړه کې مې وويل :چې دا يوه پياله شيدې به د اصحاب صفه وو بس شي ؟ددې شيدو تر ټولو زيات مستحق خو زه وم ، چې څه وڅښم او طاقت را کې پيدا شي، بيا داچې کله اصحاب صفه راغلل، نو پيغمبر عليه السلام دا حکم راته وکړ، چې زه يې پر اصحاب صفه ووتقسيم کړم ،نو مې يو مخ طمعه وختله، چې ماته دې څه را پاتې شي، مګر دخداى ج او دهغه درسول ص له اطاعت نه چاره نوه !

بس دا وو چې دده په امر هر يوه يوه يې خپل څښل شروع کړل ، ټول پرې سيراب (ماړه ) شول ،نو ده مبارک زما خواته وکتل ،ويې خندل او راته يې داسې وويل :اوس نو يوازې زه او ته پاتې شو ؟ ماويل هو !نو ده راته وويل کښينه او څښل دې شروع کړه !

بس ما هم څښل پيل کړل ،ده به راته ويل نور وڅښه ،نور وڅښه ، تر دې وخته ،چې ما ورته وويل :چې په هغه ذات مې دې قسم وي ،چې ته يې په حقه سره را استولى يې ، نور يې نشم څښلاى ،ځاى راکې نشته ، نو ده پياله زما له لاس نه واخيستله او دالله حمد يې ووايه او په بسم الله سره يې هغه پاتې شيدې وڅښلې .

بخاري جلد۲ ص۹۵۵ باب کيف کان عيش النبي(ص)

## شريعته

مولوي مسلميار

شريعته په سلګو کې دې رانغاړو
په شلېدلو ګرېوانو کې دې رانغاړو

ددعا په سپين پلو کې مو نيولې
په ستومانه امينو کې دې را نغاړو

دزړګيو په تنهاکو کې انځور يې
په زرينو تلوسو کې دې رانغاړو

حماسې مو ستا په ياد کې ليونۍ دي
دتکبير په زمزمو کې دې رانغاړو

ټول دردونه اسويلي ور پکې سپړو
په غزلو ترانو کې دې رانغاړو

هره آه او هره کړيکه دې رابولي
په زهيرو پرهرو کې دې رانغاړو

شريعت لوى او کم درپسې ګرځي
سرپه لاس ګرځوي سم درپسې ګرځي

په يو آن کې يې له زړو ايستلى نه يې
که خوښي وي او که غم درپسې ګرځي

څو امينې پرګنې امين قومونه
په هيڅ شي نشي اړم درپسې ګرځي

يو څو کونډې کونډې هيلې په دردو دي
تويوي اوښکې زم زم درپسې ګرځي

احرامونه دغزاو يې تړلي
لټوي دې سپين حرم درپسې ګرځي

# دجهاد فقهي مسائل

## جهاد کې محرمات او مکروهات

### دښمن په اور سوځول، اوبو کې لاهو کول او یایې په منجنیق بمباروول!

مفتي ابومحمد (حقاني)

۱۸ برخه

کله چې د مسلمانانو امام، جهادي قوماندان او اسلامي لښکرو د کفارو پوځي چونې، عسکري قرارګاوې یا کوم نظامي مرکز محاصره کړ، نو تر پایه به دا محاصره مستدامه ساتي او شاګرځ به ترې نه کوي، لکه څنګه چې همدا خبره په (الموسوعة الفقهية) کې لیکلې او دې څخه یې لاندیني څو صورته مستثنی کړي دي، چې دې صورتونو کې مجاهدین او جهادي مشر کولای شي، چې خپل مجاهدین شاته کړي، چې هغه په لاندې ډول دي دالموسوعې عبارت څه داسې دی: وإذا حاصر الإمام حصنا لزمته مصابرته ولا ينصرف عنه إلاّ في إحدى الحالات الآتية ١- أن يسلموا فيحرزوا بالإسلام دماءهم وأموالهم، لقول النبيّ صلى الله عليه وسلم «أمرت أن أقاتل النّاس حتّى يقولوا لا إله إلاّ الله، فإذا قالوها عصموا منّي دماءهم وأموالهم إلاّ بحقّها» .....

۱-یوداچې دا محاصره شوي کفار اسلام قبول کړي او ددوئ د اسلام د منلو په وجه یې وینې او مالونه مصؤن پاتې شي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې، ژباړه: ماته امر شوی، چې زه به تر هغې پورې له خلکو (کفارو) سره جنګیږم، چې ترڅو (لااله الا الله) ووایې، بیا یې چې کله، کلمه وویله، نو یې زما څخه ددې ددې کلمې له حق پرته وینې او مالونه معصوم او بچ شول.

.۲-داصورت دی ،چې دپیسو په عوض کې ورسره سوله وکړي ،عام ددې څخه چې داپیسې ترې ټولې یو ځل را اخلي او که نه دخراج په بڼه یې ترې هرکال اخلي،که چیرته له هغو خلکو څخه دوئ وو ،چې جزیه ترې منل کیدای شوه ،نواو دا جزیه یې پرځان ومنله ،نو هم دې ترې قبوله کړای شي ،اوداد الله تعالی ددې قول څخه جوته ده چې فرمايي: { حَتّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ}اوکه چیرته دې محاصره شویو کفارو ،مجاهدینوته دمحاصرې دماتولو په بدل کې پیسې ورکولي اوداپیسې یې دجزیې په نوم نه ورکولي ،نوکه امام پکې بیا هم مصلحت کوت ،نو ترې قبلولای یې شي ،مګر که چیرته پکې کوم مصلحت نه وو ،نو بیا یې قبلول پر امام لازم ندي.

۳-صورت دادی ،چې مجاهدین دا پوځي قرارګاه فتحه کړي ،نودې صورت کې خو پخپله محاصره له منځه ځي.۴-صورت:کله چې امام ددې محاصرې په ختمولو او عسکرو شاته کولو کې کوم ډول مصلحت وګوري ،یا مصلحت داوي ،چې دمجاهدینو اوږوده محاصره او اقامت ضرر پیښوي ،یا نهیلي پیدا شي،یایو داسې مصلحت وي ،چې د اسلامي پوځ په اوږده دیرې او اقامت له منځه ځي ،لکه حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله اهل طائف محاصره کړل ،او څه پکې ترلاسه نشول، نوویې فرمایل: چې سبا سهاربه بیرته ځو ،نو مسلمانانوویل ،چې مونږ به بیرته ځو ، خو فتحه به مو نوي کړي ،نو ده صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل ،چې سبا وختې ځانونه جګړې ته چمتو کړئ،نو چې سبا یې ورسره جنګ وکړ، صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم ژوبله ولیده ، نبی علیه السلام بیا وفرمایل :چې سبا به وختې بیرته روانیږو !نو داځل صحابه رض چوپ شول او چا څه ونه ویل ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم تبسم وکړ ،بل روایت کې ترې ضحک راغلی ،لکه همدا روایت صحیح البخاری داسې رانقل کړی: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ حَاصَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ الطَّائِفِ فَلَمْ يَفْتَحْهَا فَقَالَ إِنَّا قَافِلُونَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللهُ فَقَالَ الْمُسْلِمُونَ نَقْفُلُ وَلَمْ نَفْتَحْ قَالَ فَاغْدُوا عَلَى الْقِتَالِ فَغَدَوْا فَأَصَابَتْهُمْ جِرَاحَاتٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا قَافِلُونَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللهُ فَكَأَنَّ ذَلِكَ أَعْجَبَهُمْ فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ).

۵-صورت :مجاهدین به هغه وخت محاصره ختموي، چې کفار دکوم حاکم په حکم تسلیم شي او وسله پر مځکه وغورځوي ،لکه چې پدې دبنی قریظـوفتح ډیره مشهوره او دحدیثو کتابونو رانقل کړې ده ، چې کله نبی علیه الصلوة والسلام بنو قریظه محاصره کړل ،نوهغوئ پدې راضی شول ، چې مونږ دحضرت سعد بن معاذرضی الله عنه په فیصله او حکم له کلاګانو څخه درکوزیږو !ددوئ ددې غوښتنې اجابت وشو ،دلته علامه ابن قدامه رح )حنبلي عالم وایي: داسې حاکم کې باید دا شرطونه

موجودیدل ضروروي:چې آزاد ،مسلمان ،عاقل ،بالغ،نر ،عادل او فقیه به وي !داهغسې شرطونه دي، چې دمسلمانانو په حاکم او مشر کې هم ضرور دي ،ابن قدامه رح وايي، چې ددې جواز شته، چې که چیرته دا حاکم ړوند وي نو پریکړه به یې صحیح وي،ځکه دلته صرف داسې یو ځوک ضرور دی ،چې مصلحت وپیژني او دپخې رأیې خاوند وي ،او دا سې شخص ته ړندوالی یا عمی زیان نه رسوي ،البته په قضاء کې بینا والی حتمي دی ،داددې لپاره چې شاهد او مشهود ،مدعی او مدعی علیه ، مقر او مقرله وپیژني او تفکیک یې کړای شي ،همداسې ددې حاکم شخص لپاره دانده ضرور ،چې په ټوله فقه او هغو احکامو باندې دې وپوهیږي ،هاغه چې ددې مسئلې سره اړیکه نلري ،لکه حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه یې غوره مثال دی ،

په الموسوعة الفقهیة کې لیکي: چې که چیرته دې محاصره شویو کفارو دوه کسه دخپل ځان دپریکړې لپاره حاکمان وټاکل، نو هم صحیح ده او کوم حکم باندې چې دوئ دواړو اتفاق وکړي ، بیا به هغه صحیح وي ،که چیرته کفارو وویل، چې مونږ هغه ځوک دحکم په حیث منو ، چې دمسلمانانو امام یې وټاکي، نو دا هم صحیح ده ،خو که دوئ له خپلو پوځي چوپړیو څخه پدې شرط راکوزیدل چې ددوئ کوم کافر ملګری به یې په باب حکم کوي او یا به یې تعیین دوئ کوي ،نو دانا جایز ده ،او که چیرته دوئ محاصره شویو کفارو داسې ځوک دخپل حکم په توګه وټاکه، چې امام هم پرې خوښ وو ،نو هم جواز لري ،لکه بنو قریظه وو چې په حضرت سعد بن معاذ رض باندې راضی او دا یې وټاکه ،او بیا حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پرې راضي او دفیصلې اجازه یې ورکړه او ده داسې وفرمایل چې(لقد حکمت فیهم بحکم الله»

دحکم طریقه یې :که چیرته یې حکم وکړ، چې جنګیالي دې ووژل شي او ماشومان دې یې بندیان شي ،نوحکم یې نافذ دی ،ځکه سعد بن معاذ رض همداسې حکم کړی و ،او پیغمبر ضلی الله علیه وسلم ورته ویلي وو ،چې (لقد حکمت فیهم بحکم الله تعالی من فوق سبعة أرقعة). ،که چیرته یې داسې حکم وکړ، چې جنګیالي احساناً آزادشي او اولاد دې یې اسیر شي ،نو قاضي وايي: چې دا حکم هم لازم العمل دی اودا امام شافعی رح مذهب دی، خو ابو الخطاب دا غوره بللې ،چې دده دحکم نفاذ لازم ندی ،او که چیرته یې داسې حکم وکړ ،چې ددوئ اولاد دې احساناً آزاد وي ،نو مناسب داده ،چې جواز ورنکړل شي ،خو ددې احتمال شته چې دځینو وجوهاتو پر بناء جایز شي او که چیرته یې ترې دخوشي کیدو په بدل کې فدیه واخسته نو دا روا ده !

نوربیا ..................




جهانی که در آن بسر می بریم امروزه مملو از وحشت و نگرانی برای ساکنین خود شده و با همه وسعتش برای اهل خویش تنگ گردیده! {حَتَّى إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ} [توبة : ۱۱۸]

امنیت و آرامش این عطیه الهی امروزه به وسیله کسانیکه خود را حامی امنیت برای انسانیت قلمداد می نمایند زیر پا شده و به عنوان یک شعار خشک و بی محتوا برای معامله گیری های شخصی، قومی و نژادی در آمده و توسط بازیگران زمزمه می شود.

تلاش و اندیشه برای امنیت امروزه بیش از هر زمانی دیگر نیاز بیشتری را می طلبد تا جایگاه اصلی امنیت و صلح جهانی در صدر برنامه ها قرار گرفته، و بر علاوه تلاش های فردی و سازمانی، گفتمان های علمی در سطوح مختلف صورت بگیرد. عوامل نا امنی مورد بررسی کارشناسانه قرار گرفته تا باشد به این پدیده شوم که سبب رنج و پریشانی جهان قرار گرفته نقطه پایان گذاشته شود. نکاتی که در ذیل خدمت خوانندگان محترم تقدیم میشود صرف اشارة ایست به نقش امنیت در روند زندگی، امید است که مفید واقع گردد.

جایگاه امنیت در قرآن کریم:

قرآنکریم به عنوان آخرین کتاب الهی تمام نیازهای بشریت را مورد توجه قرار داده و برای فراهم کردن یک زندگی مناسب که در بستر آن انسان بتواند به اوج کمال و رفاه و آسایش برسد وسایل لازم را فراهم دیده است.

الله متعال من باب منت گذاری برای مخاطبان اول قرآن و کسانیکه انواع نعمات الهی را بدست فراموشی سپرده بودند چنین سخن می گوید {الَّذِي أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ} [قریش: ۴]

در آیه فوق الله متعال از دو اصل اساسی که همه انسانیت بدون استثنا به آن نیاز دارند یاد آوری می نماید، که اول آن رفاه اقتصادی است و دیگر امنیت و آرامش است؛ اگر درست دقت شود تعبیر قرآنی بسیار دقیق ومطابق با خواسته های فطری بشریت است. تجارب انسانی در طول تاریخ زندگی اش بیانگر این واقعیت است که هر گاه جوامعی که از دو اصل فوق (رفاه اقتصادی و آرامش) برخوردار بوده، همواره مسیر ترقی و پیشرفت را طی نموده و از خود در همه عرصه های زندگی آثار بس

گران سنگ و قابل توجهی را بر جای گذاشته که نسل های بعد شان توانسته اند از آن تجارب در حیات فعلی خویش استفاده های بهینه را بنمایند.

در جای دیگر از قرآن کریم از قومی سخن به میان می آید که بر خوردار از نعمت امنیت و رفاه اقتصادی بوده و زندگی بسیار خوش و آرامی را سپری می نمودند {وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ آمِنَةً مُطْمَئِنَّةً يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِنْ كُلِّ مَكَانٍ...} نحل: ۱۱۲

ترجمه: خداوند مردمان شهري را مثل مي زند كه در امن و امان بسر مي بردند و از هر طرف روزيشان به گونه فراوان به سويشان سرازير مي شد ،

اما این قوم فراموش نمودند که هر گاه قدر این عطای الهی را ندانسته و از کنار آن غافلانه و بی پروا عبور کنند و پشت به این نعمات نمایند و یا حتی از این دو وسیله سوء استفاده ابزاری صورت گیرد! ذاتی که یکی از نام هایش رقیب است و همه امور زندگی انسان را زیر نظارت بسیار دقیق و مدبرانه خویش دارد، به این حالت پایان داده و عطایای خویش را از کف مردمی که قدر ناشناسی و ناسپاسی نموده کشیده و دمار از روزگار شان بر آورده است {...فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ اللَّهِ فَأَذَاقَهَا اللَّهُ لِبَاسَ الْجُوعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ}اما آنان کفران نعمت خدا کردند ، و خداوند به خاطر کاري که انجام دادند ، گرسنگي و هراس را بديشان چشانيد (و نعمتها را از ایشان سلب گردانید و بلاها بدانان رسانید.

اهمیت و تاثیر امنیت در زندگی:

تاثیر امنیت را می توان از منظرهای مختلف مورد بررسی قرار داد که ذیلاً به آن اشارات کوتاهی می شود.

-۱امنیت و عبادت:

عبادت یکی از نیازهای فطری بشریت است که بدون آن زندگی مفهوم نداشته و حسن واقعی آن متصور نیست. بنابر این برای ادای عبادات نیاز است تا وسایلی فراهم شود که در پرتو آن بتوان به این نیاز رسیدگی نمود، شاید بتوان وسایل گوناگون و مختلفی را در زمینه فوق معرفی نمود، اما مهمترین وسیله به نظر نگارنده (امنیت است) که با وجود آن می توان به این ندای فطرت لبیک گفت، در اسلام بسا از عبادات است که یکی از شرایط انجام آن وجود امنیت بوده و هر گاه این شرط موجود نباشد ادای آن عبادت نیز به تعویق افتاده ویا حتی بعضی از عبادتی در هنگام نبود امنیت به شکل کامل آن ادا نگردیده آنگاه که خوفی از ناحیه انجام آن احساس گردد. شاید مبالغه نباشد اگر ادعا کنیم که امروزه یکی از مشکلاتی که مردم متدین ما از ناحیه آن سخت رنج می برند و بر همه ابعاد زندگی شان سایه افگنده نبود امنیت است هستند کسانیکه با وجود حتی همجواری با مسجد بعضی از نمازها را به جماعت حاضر شده نتوانسته و بسیار نیز دلتنگ از دست دادن این امتیاز بزرگ اند.

-۲نقش امنیت در انکشاف عرصه های مختلف زندگی:

براستی سبب انکشاف خیلی از کشورهای که در دور و نزدیک کشور ما قرار دارند و ما را به نحوی ریزه خوار سفره خود در اکثر مسایل زندگی نمودند در چیست؟

جالب است که کشورهای مثل جاپان، پاکستان، ایران، کوریا... با عمر کوتاه صنعتی که دارند امروزه با ابر قدرت های بزرگ دنیا در عرصه های مختلف علمی، نظامی، و صنعتی رقابت های تنگاتنگ داشته، و با تولید محصولات شان چشم ها را بر خود خیره می نمایند! آنچه که مسلم است تمام پیشرفت های شان را می توان در این دید، آنگاه که از فضای بد و نامناسبی که ملت های شان بدان دچار شده بودند و سالهای درازی از قافله پیشرفت عقب مانده بودند، راه چاره یی را برای گریز از حالت فوق سنجیدند، و با تمام توان سعی در ایجاد امنیت برای دولت و ملت های خودشدند و صادقانه در آوردن صلح وامنیت اقدام کردند، و از نتایج آن خود و نسل های آینده شان بهره مند گردیدند.

-۳نقش امنیت در انکشاف علم و دانش:

علم و دانش یکی از نیاز ضروری بشریت است. و محال است که انسان بتواند نقش اصلی خود را در حیاتش بدون علم ودانش طی کند. یکی از عواملی که برای توسعه وانکشاف علم و دانش کمک بسزایی نموده و نقش موثری در آن دارد وجود امنیت است، اگر امروزه جامعه ما با فقر علمی در همه بخش ها روبر است و به نحوی جهل و بی سوادی در جامعه ما بیداد نموده و از ما قربانی می گیرد، عمده ترین عاملش همانا نبود امنیت به معنی واقعی است که سبب شده اگر ما کدرهای علمی نیز داشته باشیم بیگانه گان از فکر و اندوخته های علمی شان جهت منافع خود استفاده کرده که هیچ حاصلی را برای ما نداشته باشد، جالب است که امروزه امریکا مهد و یا مرکزی برای مغزهای متفکر علمی که از استبداد و نبود امنیت به آن پناه آورده اند قرار گرفته و از سرمایه ها و اندوخته های علمی آنان برای منافع و انکشاف صنعتی، و سلطه خویش در دنیا استفاده می نماید.

-۴نقش امنیت در توسعه اقتصاد و تجارت:

الله متعال سرزمین حرم را یکی از سرزمین های معرفی نموده که در آن انواع و اقسام نعمات موجود بوده، شاید یکی از حکمت هایش همانا وجود امنیت کامل بوده که این دو( رفاه اقتصادی و امنیت) با هم سازگاری تنگاتنگ دارند. الذی اطعمهم من جوع وآمنهم من خوف

امروزه یکی از چالش های عمده بر سر راه که سد راه رسیدن به رفاه اقتصادی جامعه ما شده و از هر طرف مشکلات اقتصادی، فقر، بیکاری، تورم سر سام آور کالاهای تجارتی، و نوسانات بازار اسعار را به همراه داشته، در حقیقت مشکل عمده آن بر می گردد به عدم امنیت در کشور که سبب شده خیلی از سرمایه از داخل به بیرون انتقال نموده و منافع آن به جیب دیگران سرازیر شود! امروزه چقدر از نیروی انسانی ما که به هدر نمی رود!

قسمتی از آن را بیگانگان به نحوی بسیار ساده و با قیمتی بسیار ارزان و توأم با تحقیر از آن استفاده نموده و قسمتی دیگر را با بهای اندک سرباز گیری نموده ، که به ساده گی اجیر اهداف سوء دیگران و در خدمت آنان در می آیند! همه اینها بر می گردد به اقتصاد بی رونقی که بر همه ساحات زندگی ما اثرات نا مطلوب خود را بجای گذاشته! براستی چقدر از زیر ساخت

های مهم اقتصادی در این کشور وجود داشته که منتظر جوی آرام است تا بوسیله آن بتوان قد علم نموده و وسیله ی برای مصروف بودن عده یی کثیری از هموطنان ما شده و بر پدیده شوم پریشانی که هر لحظه او را تهدید نموده نقطه پایان بگذارد.

راه حل در کجاست؟

به نظر بنده هیچ دردی در دنیا نیست که درمان به همراهش نباشد! و این یکی از سنت های الهی است و او تعالی خالق اضداد است. اگر تاریخ دقیقاً مطالعه گردد دیده می شود که بشریت همواره ناآرامی های مختلفی را پشت سر گذاشته و تجارب نهایت تلخی را نیز نموده است. و همین سبب شده که به فکر چاره کار بر آید، تلاش کند تا به هر نحو ممکن به تراژیدی هولناک ناامنی پایان دهد.

تجارب مختلفی در مورد باز گرداندن امنیت در فراز و نشیب های زندگی بشر وجود داشته و ثبت اوراق تاریخ گردیده، که بعضاً زودتر و گاهی دیرتر نتیجه اش را بر جای گذاشته، بنابراین هنگامیکه به فکر علاج آنیم باید داروی را جستجو نمود که درد را از ریشه درمان نموده و آثار از آن را محو و نابود نماید. یکی از بهترین شیوه ها که در طول تاریخ برای بشر پیشنهاد شده و آنگاه که آن را در زندگی پیاده نموده، در حقیقت و بطور کلی توانسته درد را بطور ریشه یی درمان نماید. توصیه ها و رعایت نمودن اصول و رهنمایی های سازنده دین بوده که همواره این مدعا را به اثبات رسانده {اَلَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ أُولَئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُمْ مُهْتَدُونَ} [أنعام: ۸۲]

یکی دیگر از راه های رسیدن به امنیت احساس جمعی و تلاش در راستای آوردن صلح و امنیت است، و در کنار آن داشتن باور و اخلاص به این نعمت الهی و نیاز بشری چراکه صلح و امنیت را کسانی می توانند تأمین کنند که به آن ایمان قوی داشته و خود را سخت نیازمند آن بدانند.

شاید بتوان یکی دیگر از عواملی که سبب می شود تا امنیت را در زندگی خویش حاکم گردانیم. احساس خطر از ناحیه دشمن مشترکی که کیان حیات مادی و معنوی ما را با تهدید جدی مواجه می سازد. یعنی باید اهرم های فشار را شناسایی نموده و از آن برای بهبود وضعیت و پایان دادن به آن استفاده کرد.

علامه ابوالحسن ندوی در کتاب گرانسنگ خویش حدود خسارت در جهان و انحطاط مسلمین می گوید برای آنکه بتوانیم وحدت و امنیت جهانی را برای ساکنان زمین ایجاد کنیم، نیازمند آنیم که دشمن فرضی را در دیگر سیارات برای اهل زمین فرض نموده آنگاه است که تلاش ها برای مقابله به آن، شکل جمعی بر خود گرفته و برای خاتمه دادن به بحران کار آغاز خواهد شد.

در نهایت برای آنکه بتوانیم صلح و امنیت را در حیات اجتماعی خویش بر گردانیم، اولاً باید به آن ایمان کامل داشته و در قدم دوم نقاط مشترکی که سبب می شود تا بر آن اتفاق نظر صورت گرفته و همه در محور آن جمع گردند شناسایی و برای تقویه آن گام های عملی برداشته شود.



# هیوادنی مینه

رحیم الله (حریفال)

ام المومنین عایشه (رضی الله عنها) وایي: کله چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) مدینې منورې ته ورسېد، هلته ابوبکر او بلال (رضی الله عنهم) سختې تبې ونیول، زه ورغلم او ورته مې ویل: پلار جانه څنګه یې؟ او بلاله ته څنګه یې؟ عایشه (رضی الله عنها) وایي: چې ابوبکر (رضی الله عنه) به د تبې په وخت کې دا شعر وایه:

ژباړه: هر چاته په خپل کور کې سهار په خیر ویل کیږي، په داسې حال کې چې مرګ یې د څپلۍ له تسمې هم ورلنډ دی.

او وایي کله به چې د بلال حالت لږ ښه شو نو په خپل خواږه آواز سره به یې داسې ویل: ژباړه: (کاشکې خبر وای چې کومه شپه په وادي (مکه) کې تیرولی شم او شاوخوا مې اذخر او جلیل بوټي وای او آیا کومه ورځ به مې د مجنی په چینه ګذر شي، او یا د شامي او طفیل غرونه به بیا ووینم.( ام المومنین وایي: زه بیا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ته ورغلم او له دې حال نه مې خبر کړ: نو رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: خدایه !په شیبه، عتبه او امیه لعنت وکړې، هغو dمونږ له خپل وطن نه د رنځونو ځمکې ته را وشړلو.

له وطن سره مینه د انسان په خټه او فطرت کې اغږل شوې ده. انسان چې په کومه خاوره او وطن کې ژوند کوي، هلته چې د ماشومتوب شاهانه شیبې تاریخ ته سپاري، هلته چې د ټول ژوند ښکلې له کینې او کرکې خالي وختونه تیروي او هلته چې خاپوړې کوي حتما به ورسره مینه لري.

هو د چا چې په وطن او خلکو زړه خوږیږي هغوی ورسره مینه کوي، هغوی یې په غمونو او ښکې تویوي او په خوښیو یې خوښي څرګندوي.

څوک چې له وطن او خاورې سره مینه لري، هغه بیا د خلکو او ولسونو په زړونو کې هم ځای لري، چې ښه بیلګه یې ارمان لرونکي او خاورې ته وفادار شاعران دي.

تل یې د وطن په دردونو ژړلي دي او دا مینه یوازې په ویلو سره په ثبوت نه شي رسیدلی، چې له هیواد او خاورې سره مینه لرم، بلکې دا به د زړه له تله وي کومه خبره چې له زړه نه وي هغه په نورو زړونو هم تاثیر نه کوي، که شاعران هم په زور شعر وایې هغه شعر یوازې شعار دی په نورو زړونو به هیڅکله هم اغیز ونه کړي دا غږ به د زړه غږ وي.

## درویش درانی وایي

چـــې بیـــا نـــه تـــوره پورتـــه شـــي نـــه ســـر پـــه وینـــو رنـــګ شـــي
بـــاداره دغـــه جنـــګ دې د وطـــن اخـــري جنـــګ شـــي

دلته د شاعر زړه دردیدلی دی شاعر نور له جنګ جګړو ستړی شوی دی، شاعر له خدایه غواړي چې دا دې زما د وطن وروستۍ جګړه شي .

شـاعران خـو د احساسـاتو او عواطفـو پـه نـړۍ کـې ژونـد کـوي، چـې احسـاس یـې د سـتایلو دی. زموږ خاورې او هیواد ، چې کومې بدې ورځې لیدلې او اوس یې هم وینې هغه یې هغه زامن دي، چې د سیاست ډګر ته یې دانګلي دي یو ډله یې د یو چا په پښو کې ور لویدلې ده او بله ډله یې بیا د نورو ډول ته نخیدلې ده.

او کـه لـه وطـن او خـاورې سـره یـې د مینـې څرګندونـه هـم کـړې ده، یـوازې نمایشـي وه او ده. کمونسـتانو هـم پـه خولـه لـه هیـواد او خلکـو سـره د مینـې د درلودلـو درغجـن شـعارونه ورکـول. راځئ چې د دې دروغجنې مینې یو څو بیلګې را وخلو:

تره کي او امین به په ډاګه دا خبره کوله چې: مونږ له (۱۷) میلیونه نفوس څخه یوازې یو ملیون هغه خلک غواړو ها د دوی په اصطلاح چې انقلاب ته وفادار وي.

او کارمل به بیا اصلي افغان هغه څوک باله چې پر افغان شوروي دوستۍ به یې ویاړ کاوه. نجیب خپله غټه تنه او غټ سر په مسکو کې د لینین کبیر بوت ته ټیټ کړ.

ځواکونو او استخباراتو یې په لکونو بې ګناه انسان شهیدان کړل، په میلیونو یې له خپل ګران ټاټوبي څخه هجرت کولو ته اړ کړل، چې د ډیرو یې هډونه په پردیو وطنونو کې خاورې شول.

او ډیرې میندې لا هم د خپلو ورکو زامنو راتګ ته د انتظار شپې شماري.

دا په یاد ولرئ هر هغه څوک چې غواړي د خپل وطن او خلکو لپاره کار وکړي هغوی به تر ټولو ړومبی له پردیو څخه بې نیازه کیږي په پردیو پورې به خپلې هیلې نه تړي له خپلو خلکو سره به مینه لري د خپل هیواد ملي شتمنۍ او ګټې به ورته ارزښت لري، د خپل ولس د ښوزلو درناوی به کوي، هغه هم د زړه له تله که نه بیا به یې انجام د خلقي او پرچمي رفیقانو په څطر وي. چې سترې سترې نظامې قواوې به یې ماتې خورې او هغه امپراطوري به یې چې په ټوله نړۍ یې د واکمنۍ خوبونه لیدل دړې وړې کیږي.

هر ډله او حرکت چې دلته د اوږده مهال لپاره کارکول غواړي دې ټکي ته باید په جدي توګه پاملرنه وکړي د خپلو ځوانانو په زړونو کې له خلکو او وطن سره مینې ته ځای ورکړي او دې ته هم باید متوجې واوسو، چې تاریخ به هره وړه او غټه جفا چې هر چا کړې وي ساتي او راتلونکي نسلونه به بیا د هیواد او خلکو دښمنان تر نن هم ښه پیژني.

تر اوسه چې مل او غل نه دی څرګند لا دلته جګړه روانه ده دلته لا تر اوسه هم خلک له جنګ نه دي وزګار دلته اوس هم هره ورځ وینې بهیږي خو دا په دې معنی نه دي چې ټولې جفاګانې به هیریږي او هرڅه به خلک د یوه ویرونکي خوب په څېر له یاده باسي راتلونکي نسلونه به تاریخونه لولي تحقیقات به کوي، سپین او تور به سره بېلوي دروغجنو او رېښتینو تر منځ به کرښې را کاږي.




## د کندز د جهادي چارومسؤل ملا عبدالسلام بریالی له مورچل سره په مرکه کې:

**ما ته چې د دې ولایاتو د اولس جهادي روحیه معلومه ده نو ویلی شم چې دوستم به هیڅکله ونه توانیږي چې خلک یوځل بیا تیرباسي او د خپلو اهدافو لپاره یې له مجاهدینو سره وجنګوي!**

کندز دافغانستان په شمال کې موقعیت لري ،چې ختیځ ته یې تخار ، جنوب ته بغلان ، لویدیځ ته بلخ او شمال ته یې دګاونډي هیواد تاجکستان حدود پراته دي ، کندز ولایت چې ۸۰۴۰ مربع کیلومتره مساحت لري نفوس یې دوروستیو شمیرنو له مخې تر ۸ لکو زیات ښودل شوی دی.

کندز ولایت په مرکزي ښار سربیره د امام صاحب ، چاردرې ، قلعه زال ، علي اباد ، خان اباد او دشت ارچي په نومونو شپږ ولسوالۍ لري ، دکندز اوسیدونکي پښتانه، تاجک ، ازبک ، ترکمن ، ایماق او هزاره افغانان دي، دکندزولایت مرکز ( کندز ښار ) دی چې دافغانستان په شمال کې تر مزارشریف وروسته دوهم ستر ښار بلل کیږي.

ملا عبدالسلام بریالی چې دافغانستان په شمال کې له مخکښو جهادي ځیرو څخه شمیرل کیږي،همدا اوس د کندز ولایت جهادي مسؤلیت په غاړه لري،دمورچل مجلې ددې ګڼې لپاره مو له نوموړي سره مرکه کړې چې ستاسو پام ورته راګرځوو.

**پوښتنه**

محترم بریالی صاحب له هرڅه وړاندې درته ښه راغلاست وایو ، که لومړی خپل ځان لوستونکو ته معرفي کړئ ؟

**ځواب**

نحمده و نصلي علی رسوله الکریم امابعد : زه تاسو او لوستونکو ته خپل سلامونه اونیکې هیلې وړاندې کوم او د مرکې له بلنې مو مننه کوم.

زما نوم عبدالسلام دی د کندز ولایت د دشت ارچي ولسوالۍ اوسیدونکی یم او همدا اوس د اسلامي امارت ترقیادت لاندې د کندز ولایت د والي یا نظامي مسؤل په حیث جهادي دنده اجراء کوم.

**پوښتنه**

محترم بریالی صاحب که لومړی مهمې موضوع ته راشو، سږ کال په کندز کې د نظامي تحولاتو له اړخه یو انقلابي کال و، د کندز مطلق اکثریت سیمې ددښمن له شتون څخه پاکې شوې که په دې اړه دکندز د مرکز او ولسوالیو په رابطه معلومات راسره شریک کړئ چې د خیبر علمیاتو په لړ کې په کندز کې کومې لاسته راوړنې تر ګوتو شوي دي؟

**ځواب**

ددې لپاره چې په کندز کې د سږنیو لاسته راوړنو او مفتوحه سیمو تصویر تاسو ته ښه واضح شي، زه به تردې وړاندې دکندز حالت تاسو ته لومړی تشریح کړم.

څو کاله وړاندې چې امریکایانو او نورو یرغلګرو د داخلي ټوپکیانو سره په ګډه په کندز او ګنو نورو ولایاتو کې داربکي سازي پروژه پیل کړه او دهغه لپاره یې سخت پوځي عملیات، بمبارونه او وحشت په کار واچاوو، دیرغلګرو د ډیر فشار له امله په کندز کې په اکثره سیمو اربکیان مسلط شول، تردې چې د کندز د مرکز په مربوطاتو کې د بوز، کوچني کنم او باباجان له کلیو پرته نورې ټولې سیمې اربکیانو لاندې کړې، دچهاردرې، امام صاحب، قلعه زال او نورو ولسوالیو تقریبا ټولې سیمې ددښمن تر تسلط لاندې راغلې په کلیو کې یې داربکیانو پوستې ځای په ځای کړې او مجاهدین مجبور و چې یوازې چریکي فعالیت ته ادامه ورکړي.

مګر د سږکال په اوږدو کې لله الحمد په کندز کې داسې یو جهاد تحول راغی چې مطلق اکثریت سیمې فتحه او ددښمن ټغر له ټولو اطرافي سیمو ټول شو.

مثلا د کندز د مرکز په مربوطاتو کې د شرق خواته لوی کنم، ګاړي، کهنه قشلاق، بوته کشان، قاري ناصر، خزاني، سازي، شاخ کوړي، حضرت سلطان، دوراهي، سي دوکانه قلعه جای، کته خیل، چارګذر، جورګذر، سنزیی، ملرغي

، نویان او ګنې نور پراخ کلي داربکیانو له وجوده پاک شول او دمجاهدینو په تسلط کې راغلل.

د غرب خواته د ګورتیپې سیمه چې خورا ستره علاقه ده او ګڼ کلي په کې دي مکمله ازاده شوه، دشار په نورو اطرافو کې هم ددښمن پوستې او شتون له منځه لاړ او ددښمن واک یوازې دکندز ښار تر دروازو پورې محدود شو.

چاردره ولسوالۍ چې پخوا یې ټول کلي داربکیانو د پوستو تر پوښښ لاندې و او مجاهدینو پکې یوازې چریکي فعالیت کولای شوای، اوس یې **۹۵** فیصده خاوره ددښمن له شتون څخه تصفیه شوې او دمجاهدین په تسلط کې راغلې په دې ولسوالۍ کې داربکیانو لسګونه پوستې له منځه تللي دي همدا

اوس په چارده کې يوازې دولسوالۍ مرکز ،تر کندزه غځېدلی سرک او د سرک بالا يو څه حصه کې دښمن وجود لري نوره دا ولسوالي ازاده ده.
ارچي ولسوالي چې پخوا په کې مجاهدين يوازې په لس فيصده سيمه واکمن و د فتوحاتو په نتيجه کې يې اوس ۹۵ فيصده علاقه دمجاهدينو تر واک لاندې راغلې او يوازې مرکز کې يې دښمن شتون لري.
امام صاحب ولسوالي چې پخوا په کې مجاهدين چريکي او سيدل او مکمله ددښمن په لاس کې وه اوس يې ۷۰ فيصده سيمې له دښمن څخه پاکه شوې ده دغسې په خان اباد ، علي اباد او قلعه زال کې هم مجاهدين قوي شتون لري عمليات يې جاري دي او ځيني سيمې يې هم په واک کې دي
لوړ تفصيل ته په پام سره ويلی شو چې سږ کال په کندز کې بيساري فتوحات رامنځته شوي دي او ددښمن داربکي سازي پروژه چې ډير مصارف يې هم ورباندې وکړل تقريبا له منځه تللې ده.

## پوښتنه

که دا راته ووايا ست چې په دې عملياتو کې يوازې له دښمن څخه سيمې تصفيه شوي دي، که ددښمن افراد هم وژل شوی دي؟

## ځواب

د سږکال عمليات چې په څو مرحلو کې ترسره شول، په کندز کې د خپل شکل تر ټولو ستر عمليات و چې په سلګونو مجاهدينو په يوه وار په کې شرکت کاوو ،په دې عملياتو کې هر ځل دښمن ته د سرا و مال درانه زيانونه هم رسيدل، ددښمن لسګونه اربکيان مړه او ټپيان شول يو شمير يې تسليم شول او لوی مقدار اسلحې او مهمات يې مجاهدينو په غنيمت ونيول.

## پوښتنه

هغه کوم عوامل و چې په کندز کې دمجاهدينو سږني عمليات دومره بريالي شول ؟

## ځواب

اصل کې خو موږ په دې ايمان لرو چې دنيايي تصرفات او تحولات ټول د الله تعالی په اراده رامنځته کيږي، مجاهدين که کوم فتوحات کوي هم زموږ دا عقيده ده چې اساسي علت يې دالله تعالی نصرت دی، دالله تعالی د نصرت او مرحمت د نزول لپاره مجاهدينو ته لازمه ده چې داسې کارونه وکړي چې دالله تعالی د رحم او نصرت وړ وګرځي.
په کندز کې سږ کال دمجاهدينو ترمينځ ډير ښه خپل منځي اتحاد او همکاري موجوده وه ، تر دې چې دمختلفو ولسواليو مجاهدينو په اتفاق سره عمليات کول او په سلګونو مجاهدين به په يو ځای عملياتو ته راغونډيدل، بله دا چې د عامو مسلمانانو زړه هم له مجاهدينو سره و ، عامو مسلمانانو له مجاهدينو سره دومره همکاري درلوده چې د مرکز مربوط د لوی کنم په سيمه کې خو عام خلک د عملياتو په ورځ د اشر په ډول راووتل او دمجاهدينو سره يې ددښمن په له منځه وړلو کې همکاري وکړه ، دمجاهدينو

مکمل اکمالات یي کول حتی د جګړې په وخت یي ورته ډوډۍ او پخې شوې غوښې رسولې او د وسلو او مهماتو له مرستې یي هم مخ نه اړاوو، لکه الله تعالی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته فرمایلي: هو الذی ایدک بنصره و بالمؤمنین. دلته هم الله تعالی په عامو مؤمنانو د مجاهدینو نصرت وکړ، نو دې ته په پام سره زه ویلی شم چې د مجاهدینو اتفاق او اتحاد او د عامو مسلمانانو سره ښه مخلصانه تعامل او هماهنګي برکت و چې مجاهدین د الله تعالی د نصرت وړ وګرځېدل، ترڅو بالاخره د الله تعالی د نصرت په برکت له دې ولایت څخه د اربکیانو لمن ټوله شوه.

**پوښتنه**

په کندز ولایت کې چې که د دعوت وارشاد، محاکمو او معارف د فعالیتونو په اړه معلومات راسره شریک کړئ، مننه وي به مو یو ؟

**ځواب**

د دعوت او جلب وجذب کار په کندز کې ماشاءالله ډیر ښه روان دی، د سږکال لاسته راوړنو کې د دعوت هم ښه رول و، سږکال چې د کندز له ډیرې سیمو د اربکیانو ټغر ټولیدو نو په دې که اکثره پوستې په نظامي عملیاتو ونیول شوې، یو شمیر نورې یي د اسلامي امارت د دعوت او عفوې له پروګرام نه په استفاده تسلیم هم شوې مثلا د مرکز مربوط د ګورتیپې په سیمه کې څلور پنځه پوستې اربکیان مجاهدینو ته تسلیم شول او خپلې وسلې یي مجاهدینو ته وسپارلې په چهاردره کې هم څلور پوستې مکملې تسلیم شوې، د غسې په نور سیمو کې هم خال خال د دښمن افراد تسلیم شوي دي او دا لړۍ لا هم جریان لري.

د اسلامي امارت قضایي نظام هم په کندز کې په ټول نظم او ترتیب فعال دی، موږ کندز د ابتدایي محاکمو په برخه کې په دریو برخو ویشلی دی چې یوه ابتدائیه محکمه د مرکز او خان اباد لپاره، بله د امام صاحب او ارچي لپاره او دریمه د چهاردرې، علي اباد او قلعه زال لپاره ده، چې عام خلک ورته د خپلو مسائلو په رابطه مراجعه کوي او خلک یي له کارونو راضي دي.

د معارف مربوط کارونه په کندز کې له پخوا څخه په ښه طریقه روان دي، دا چې دښمن تبلیغات کوي چې مجاهدین د معارف بنسټونو ته تاوان رسوي باید ووایم چې د اسلامي امارت د رسمي پالیسۍ سره سم مجاهدینو په کندز کې هیڅکله ښوونځیو ته زیان نه دی رسولی.

په کندز کې د تعلیم او تربیې د کمیسیون لخوا د ښوونځیو او مدارسو ښه نظارت کیږي، په دې برخه کې د معارف د کارونو د پرمختګ لپاره ښې غونډې جوړې شوي او له کړنو څخه یي عام خلک هم ډیر راضي دي.

**پوښتنه**

څه موده وړاندې دافغانستان د شمال لوی جګړه مار رشید دوستم چې اوس د اشرف غني مرستیال دی اعلان وکړ چې شل زره کسیزه ملیشه به جوړه کړي او په شمالي ولایاتو کې به له مجاهدینو سره جګړې وکړي ، تاسو دنوموړې ددې خبرې په اړه څه تبصره لرئ ؟

**ځواب**

رشید دوستم لکه څنګه چې ټولو ته معلوم دی دیرغلګرو مشهور غلام او دافغان اولس ستر قاتل دی،نوموړی چې پخوا د روسانو اجرتي قاتل و اوس د امریکایانو تر څنګ ولاړ دی،نوموړي هرځل هڅه کړې چې دبهرنیو اشغالګرو لپاره مسلمان اولس قتل کړي،چې له همدې امله یو له منفورو څیرو څخه دی.

نوموړی اوس په ټول افغانستان او شمالي ولایاتو کې دومره منفور دی،چې ډیر لږ کسان به یې هم په خبره عمل ونه کړي، دنوموړي لخوا د ملیشه جوړونې لاپې یوازې د تبلیغاتي جنګ د ګرم ساتلو لپاره کیږي،هغه ولایات چې دوستم پخوا د خپلې ملیشې د سربازګیرۍ لپاره ترې استفاده کوله اوس یې مطلق اکثریت سیمې دمجاهدین په ولکه کې دي،دافغانستان په شمال کې کندز، تخار،فاریاب، سرپل،جوزجان او نور ولایات د مجاهدینو قوي مراکز دي او عام اولسونه یې په ټینګ تعهد داسلامي امارت ترڅنګ ولاړ دي.

ماته چې ددې ولایاتو داولس جهادي روحیه معلومه ده نو ویلی شم چې دوستم به هیڅکله ونه توانیږي چې خلک یوځل بیا تیرباسي او دخپلو اهدافو لپاره یې له مجاهدینو سره وجنګوي، ددوستم اووده غوندې دیرغلګرو د نورو ملګرو وروستی وس همدا د اربکي سازي پروګرام و چې هغه هم له سخت شکست سره مخامخ شو او اوس د یومخیز له منځه تلو په حال کې دی.

**پوښتنه**

په کندز کې د مجاهدینو د تلفاتو دغه راز د عامو ملکي خلکو د تلفاتو په اړه که معلومات راکړئ ، دملکي خلکو دتلفاتو موضوع اوس په یوه مهمه موضوع اوښتې او دښمنې رسنۍ ډیر تبلیغات کوي چې د مجاهدینو په سیمو کې ملکي خلکو ته روزانه ډیر زیانونه اوړي آیا په کندز کې په تیر کال کې دمجاهدینو لخوا ملکي خلکو ته کوم زیانونه اوښتي دي ؟

**ځواب**

د مجاهدینو دتلفاتو په اړه خو به ووایم ، چې لله الحمد په اوس وخت کې دمجاهدینو تلفات ترټولو ټیټې سطحې ته راښکته شوي دي، پخوا مجاهدینو ته ډیر تلفات د دښمن په ناڅاپي چاپو کې رسیدل،اوس دغه چاپې یومخ کمې شوي دي،په تیرو څو میاشتو کې یوازې یوځل په چاردره کې خارجیانو یوه چاپه وهلې، چې له هغه سره هم مجاهدینو جنګ وکړ دښمن ته یې درونډ زیان ورساوو او

څوکلاکوف ټوپک يې ترې غنيمت کړل. له هماغې پيښې وروسته بيا چاپه نه ده وهل شوې،دغه راز ددښمن ډرون حملې هم د پخوا په نسبت بيخي کمې شوې دي.

د ملکي خلکو د تلفاتو په اړه به ووايم چې رښتيا هم نن سبا ددښمنو رسنيو لخوا دا موضوع ډيره يادېږي او مجاهدينو د ملکي خلکو په وژلو تورن بلل کيږي، خو بايد روښانه کړم چې له دې موضوع څخه ترډيره تبليغاتي استفاده کيږي، په واقعيت کې حالت دا سې نه دی لکه رسنۍ يې چې راپورونه ورکوي، د کندز په سطحه که ووايم چې د جهادي عملياتو يوه ګرمه سيمه ده په تير ټول کال کې يوازې يوځل دمجاهدينو يو موټرسايکل بم اشتباها په ملکي خلکو منفجر شوی چې ملکي کسانو ته په کې مرګ ژوبله اوښتې له همدې يوه مورد پرته بله هيڅ د ملکي تلفاتو پيښه نه ده رامنځته شوې.

خو له دې سره سره مجاهدينو ته هميشه په توصيو کې ويل کيږي چې د ملکي خلکو ژوند ته بايد ډير پام وکړي ځکه زموږ دجهاد يو هدف د مسلمان اولس خوندي کول دي چې بايد ضرر ورته ونه رسيږي.

**پوښتنه**

محترم ملا عبدالسلام بريالی صاحب !

ستاسو له توضيحاتو ډيره مننه په پای کې که کومه خبره اضافه کول غواړئ،يا کوم پيغام لرئ مهرباني وکړئ؟

**ځواب**

بلـه داسې خبره نـه وه ،يوازې نن سبا ځينو رسنيو دا اوازې ګرمې کړي چې دهيواد په شمال کې خپلسري وسلوال پيدا شوي دي چې داسلامي امارت اوامر نه مني،بايد واضحه کړم چې په ټولو شمالي ولايتو خصوصا کندز کې چې څومره مجاهدين دي ټول داسلامي امارت تر مشرۍ لاندې د اطاعت او تعهد په چوکاټ کې جهادي عمليات پرمخ وړي، داچې دښمن د جهادي صف د تفرق خبره کوي دا خبره زه په ټينګه ردوم او هيڅ جزئي رښتينوالی هم نلري.

پيغام مې مجاهدينو ته دادی،چې لومړی خو بايد خپل اتحاد وساتي،دمجاهدينو اتحاد او اتفاق هغه څه دی چې دالله تعالی د نصرت سبب ګرځي، لکه وړاندې مې چې يادونه وکړه سږ په کندز کې موږ د اتحاد او اتفاق عملي برکات وليدل چې زيات فتوحات مو په برخه شول.

بله داچې مجاهدين بايد داسلامي امارت د مشرتابه او خصوصا اميرالمؤمنين حفظه الله اطاعت وکړي،دغه امارت چې شل کاله يې دباطل په مقابل کې مبارزه کړې او امتحان يې ورکړی دی دالله تعالی يو لوی نعمت دی بايد ددې نعمت قدر وپيژنو او وفا ورسره وکړو .

مجاهدينو ته مې وروستۍ توصيه داده چې له عامو خلکو سره ښه ګوزاره وکړي،تر څو له مجاهدينو مايوسه نه شي

# داسلامي تهذيب څو غوره بیلګې


(دوهمه برخه)

م عبدالصمد سیال

سم الله الرحمن الرحیم

دعقائدو، عباداتو، احکامو، اخلاقو، معاملاتو، ادابو، اوعاداتو کې داصلاحاتوراوستونکی، ښوونکی اومعلم دالله تعالی له لوري په مکه مکرمه کې هغه مهال راڅرګندشو چې خلکو دجهالت په رسۍ پوري خپلي منګولي ټینګي کړي وي، دهغه صلی الله علیه وسلم ژوند سر ترپایه تعلیم اوتربیه وه، په لمړي سر کې یې خلکو ته دتوحید اورسالت سبق پیل کړ، کله چې خلکو توحید اورسالت ومنل نو ورپسې یې عبادات، احکام، اخلاق، اداب او داجتماعي اوانفرادي ژوند تېرولو ټول اصول اوقوانین وروښودل، چې په اسلامي شریعت کې هره یوه خبره چې ورته اړتیا وه بیان شوه.

درنو لوستونکو! په نني دور کې لکه څرنګه چې موپه عباداتو کې کمزوري زیاته شوي ده، همداراز مو دالله تعالی اودنبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه ښووني هم شاته غورځولي دي چې دخوراک، څښاک، ناستي پاستي او دژوند په ټولواړخونو کې یې راته بیان کړي دي.

په اوس مهال کې خلک دپردي تمدن (یهودیت اونصرانیت) تراغیزي لاندي دي، ،غربیان اونورو دډیموکراسۍ موریدان یې خپل مقتدایان جوړکړي، زماپه آند ددې یوستر لامل دادی: چې مسلمانان دالهي دین اودخپل پیغمبر له هدایاتو اواصولو ناخبره پاتې دي ، نو غواړم چې له قرآن کریم اودرسول الله صلی الله علیه وسلم له احادیثو څخه یوڅوبېلګي رانقل کړم چې تریوه حده خبرشو چې اسلام دژوند اوغوره ټولني دتهذیب پرلور څومره ډېرنظر کړی.

۱= الله تعالی فرمایي: وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ وَمَنْ لَمْ يَتُبْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ (۱۱) . الحجرات

ژباړه: تاسو یوبل ته په بدو نومونو مه وایاست، له ایمان څخه وروسته تر ټولو بدنوم دفسق دی ,اوکه څوک له دغي ګناه توبه نه کړي نوهغوئ ظالمان دي.

یعني په بدو لقبونوسره یادول لویه ګناه ده، وګورئ! په دې آیت شریف کې دمسلمانانو دعزت دخوندي توب په اړه الله تعالی امر کړی، ځکه چې په بدو لقبونوسره یوبل یادول دانسان آبرو اوعزت له منځه وړي.

۲= همداراز الله تعالی فرمایي: لایسخر قوم من قوم

ژباړه: تاسویوقوم په بل قوم مسخري مه سره کوئ!

ځکه چې په مسخرو کولو سره دهغه قوم تحقیر کول کیږي، اوالله تعالی دمسلمان تحقیر اوبي عزتي نه خوښوي

درسول الله صلی الله علیه وسلم په احادیثو کې راځي:

۳= رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: مجلسونه امانت دي

# د رسول الله ﷺ د مینې په اړه د حافظ امام الذهبي وینا

حامد افغان

امام الذهبي رحمه الله (پیدا: ۶۷۳ هـ / ۷۴۸ هـ – مړ: ۱۲۷۴م / ۱۳۴۸م) په خپل ښایسته کتاب (سیر الاعلام النبلاء) کې د مشهور تابعي عَبیدة السلماني رحمه الله په ژوندلیک کې کاږي یوه سړي عبیده ته وویل: زموږ سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم څو وېښتان اینبي دي، عبیده ورته وویل: که زما سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو وېښته هم وی نو د ځمکې پر مخ له ټولو سپینو او سرو زرو به راته ګران و. امام الذهبي رحمه الله د عبیده السلماني په دې خبره باندې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د مسلمانانو د مینې په معیار ښکلې او په زړه پورې خبرې کړې دي، دلته یې کټمټ درته پښتو کوم.

امام الذهبي رحمه الله لیکي: د عبیده دا خبره د مومن د پوره مینې معیار ده، د مومن په نزد به د رسول الله صلی الله علیه وسلم وېښته د نړۍ له ټولو سرو او سپینو زرو غوره وي، دا امام (عبیده) پنځوس کاله له رسول الله صلی الله علیه وسلم وروسته دا خبره کوي، که موږ ته په کره توګه ثابته شي چې دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم وېښته دی نو موږ به څه وایو؟ او یا د هغه د چپل تسمه یا د نوک ټوټه یا د هغه د څښاک لوښی؟.

که یو شتمن د دې شیانو په ترلاسه کولو خپله ډېره شتمني ولګوي نو هغه به مبذر، بدخرڅه یا ساده بلل کیږي؟ نه، هیڅکله نه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې پخپلو لاسونو کوم جومات جوړ کړی ده د هغه د زیارت له پاره سفر وکړه او په دې لاره کې خپلې پیسې ولګوه، د هغه زیارت ته ځان ورسوه او سلام ورته وکړه، د هغه ښار (مدینه منوره) ته سفر وکړه هغه ځایونه وګوره چې دی په کې ګرځېدلی و، د احد غره ته ورشه او د هغه له لیدلو خوند واخله، هغه احد چې په رسول الله صلی الله علیه وسلم ګران و، تــه تــر هغو پوره مومن نه شې کیدلی څو دا ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم تا ته له خپله ځانه، اولاده، شتمنیو او ټولو خلکو در ګران نه شي.

مکې ته ولاړ شه او د طواف په مهال حجر اسود ښکول کړه، په هغه خوله کیږده ځکه په دې کې شک نشته چې هغه د انسانانو سرخیل صلی الله علیه وسلم ښکول کړی و، او په هغه یې مبارکې شونډې اینبې وې، تر دې به بله لویه د فخر خبره وي چې هغه په کوم ځای خپلې مبارکې شونډې اینبې وي او ته هم هغلته خپلې شونډې کیږدې؟!!. ثابت البناني رحمه الله (مړ څه باندې ۱۲۰هـ) مشهور تابعي او د انس بن مالک شاګرد دی، کله به یې چې انس بن مالک رضي الله عنه ولید له لاسه به یې ونیو، د هغه لاس به یې ښکول کړ او وبه یې ویل: دا هغه لاس دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له لاس سره لګیدلی دی.

د امام الذهبي رحمه الله له خبرو نه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د ده مینه معلومولی شو، ځکه خو د ده خبرې د مومن په زړه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم مینه په څپو کوي او دې ته یې اماده او چمتو کوي چې سمدستي د مدینې په لور سفر ته ملا وتړي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم مینه د هر مومن نر او ښځې ایمان تکمیلوي، د هغه په سنتو او لارښوونو عمل کول او د هغه اخلاق خپلول له هغه سره د رښتینې مینې ثبوت ده.




# دجرح او تعديل دعلماوو په نظر کې

الحمد لله رب العالمين، والصلاة والسلام على إمام الأئمة والأنبياء والعلماء والصالحين، نبينا محمد وعلى آله وصحبه ومن سار على نهجه واقتفى أثره إلى يوم الدين. وبعد !

په زماني لحاظ د امام صاحب او زمونږ تر مينځ ډېره لويه فاصله ده، ځکه چه ديارلس سوه کاله وړاندې تير شوی، خو په فکري لحاظ نن هم په مليار دونو مسلمانان د امام صاحب سره تړلي او دهغه دفکر پيروان دي،( ذلک فضل الله يؤتيه من يشاء). خو دا هم بايد ووايم چه زمونږ نه ډير داسې شته چه ددغه ستر شخصيت باره کې غير د نوم نه نور هيڅ نه پيژني، او له بده مرغه بعضې لا بيا په دغه شخصيت ډول ډول تورنه لګوي، او ډير سپک نظر ورته کوي.

دغه يو څو وجې وې چې زه يې ديته مجبور کړم چه پ، امام صاحب باندې يوه مختصره ليکنه او په عين وخت کې جامع ليکنه وکړم. ما دخپل وسع مطابق کوشش کړی خو کيدای شي دغه کوشش نيمګړی وي، ځکه چه انساني کوشش وي نيمګړی، او کمال خو صرف الله تعالى ته ثابت دی او دعصمت خاوندان انبياء عليهم السلام دي. او داچه دغه ليکنه دعوامو لپاره نده نو په همدې خاطر ما عربي نصوص او اصطلاحات په کې ندي ترجمه کړي ځکه چه علماؤ ته يې د ترجمې ضرورت نشته.

د موضوع مهم ټکي:

- ✓ د امام ابوحنيفه رحمه الله لنډه پيژندنه
- ✓ د امام ابوحنيفه رحمه الله فضيلت
- ✓ د امام ابوحنيفه رحمه الله باره کې تعديل او توثيق
- ✓ د امام ابوحنيفه رحمه الله باره کی جرحه
- ✓ د جرح او تعديل د تعارض دضوابطو په رڼا کې د تعارض ختمول

✓ د امام صاحب باره کې دجرحې اساسي عوامل

✓ د پورتني تحقیق نه وروسته، د حدیثو په میدان کې دامام صاحب حکم.

✓ په امام صاحب باندې د اوسنی زماني جارحینو ته زما توصیه.

اوله نقطه ده: د امام ابوحنیفه رحمه الله لنډه پیژندنه

**نوم او نسب**: نوم یې نعمان ؤ د ثابت ځوی ؤ او د نعمان لمسی ؤ او د زوطا کړوسی ؤ ، او زوطا په مرزبان مشهور ؤ، او مرزبان د اهل فرس په اصطلاح کې قومي مشر ته وایې. امام صاحب په ابو حنیفه مشهور ؤ دا په دې خاطر نه چه دهغه لور حنیفه نومیده دهغه خو صرف یو بچی ؤ چه حماد نومیده، خو په دې خاطر چه دده یو د رنګ بوتل ؤ چه دعراق په لهجه کې ورته حنیفه وایې، هغه به یې د ډیرو لیکلو په وجه ډیر استعمالولو نو په ابو حنیفه مشهور شو . او دی د بني تیم الله بن ثعلبه قبیلي په ولاء کې ؤ ، امام ابو جعفر الطحاوي په مشکل الاثار کې په خپل سند دامام صاحب نه روایت کړی

(مشکل الاثار(۴/۵۴))

چه دا ولاء دموالاتو ولاء وه د عتق او یا د اسلام ولا نه وه.

**ولادت وفات او نسبت**: په ارجح قول امام صاحب په کال ۸۰وم هجري کې د عبد الملک بن مروان په خلافت کې په کوفه کې پیدا شو ، او په کال ۱۵۰ هجري دابو جعفر منصور په خلافت کې چه منصور دقضاء دنه منلو په وجه بندي کړ او هم یې تعذیب کړ نو مریض شو او بیا په بغداد کې وفات شو. دمحدثینو دطبقاتو په حساب امام صاحب د شپږمې طبقې دحدیثو راوي ؤ ځکه چه د کشرانو تابعینو دجملې څخه ؤ ، امام صاحب اصلاً عجمي ؤ اکثره د تراجمو علماء لیکې چه پلار او نیکه یې د کابل نه کوفې ته تللي ؤ.

**زدکړه استاذان او شاګردان**: امام صاحب لکه دنورو علماؤ په څیر په ډیر ماشوم توب کې قرآن کریم او بعضې ضروري علوم یاد کړه ، او بیا یې هغه وخت خپل پوره عمر علم ته وقف کړ چه امام الشعبي عامر بن شرحبیل ورته دعلم توصیه وکړه ځکه چه د ذکاوت نښې یې په کې لیدلې وې. او د تفقه لاریې هغه وخت اختیار کړه چه د وینځې دطلاقولو باره کې ترې یوې ښځې پوښتنه وکړه او دی دهغې نه عاجز شو او ښځې بیا دحماد فقیه نه جواب راوړو ،(و هغه داسې ؤ چه یو طلاق به ورته په طهر کې ورکړي اوبیا یې چه دوه حیضه نور تیرکړه بل میره ته حلالیږی.)

نو له همدې کبله امام صاحب له همغې ورځې څخه فقه شروع کړه چه عمر یې لا ۲۵ کلنی ته نه ؤ رسیدلی، او دحماد شاګرد شو ، او کله چه حماد دڅه وخت لپاره بصرې ته لاړو نو امام صاحب ته یې وویل چه ته زما پر ځای مفتي شوې ترهغې چه زه واپس شم، او کله چه بیا حماد په ۱۲۰هجري کې وفات شو نو امام صاحب د کوفې دعلماؤ په اتفاق دحماد دمجلس استاد شو. امام صاحب په سلګونو

استاذان درلودل چه څه يې امام سيوطي په تبيض الصحيفه کې ذکر کړي، چه په استاذانو کې يې شعبي، حماد بن أبی سليمان، حسن البصري، عطاء بن آبی رباح، ابراهيم النخعي، نافع مولی ابن عمر، ابن شهاب الزهری، او داسې نور ډير زيات چه يوه جمله صحابه يې هم ليدلي ؤ او روايت يې ورنه کړی ؤ، چه د هغوی څخه انس رضي الله عنه ؤ چه په کوفه کې يې وليده، او عبدالله بن الحارث بن جزء الزبيدي يې په حرم کې ليدلی ؤ او د عبدالله بن ابي اوفی رضي الله عنه نه يې مشهور حديث اوريدلی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: من بنی لله مسجدا ولو کمفحص قطاة بنی الله له بيتا فی الجنة امام صاحب همدارنګه ډير زيات شاګردان لرل چه د هغوی دجملې څخه: امام محمد بن الحسن الشيباني امام ابو يوسف يعقوب بن ابراهيم، امام عبدالله بن المبارک، امام زفر بن الهذيل، امام حمزه الزيات، امام مکي ابن ابراهيم، او په زرګونو نور. (سير اعلام المحدثين للشيخ رمزي(ص/۶۰۱...)

✓ دوهمه نقطه: د امام ابوحنيفه رحمه الله فضيلت:

د امام صاحب دفضيلت باره کې څو ټکي ډير مهم دي چه هغه په لاندې توګه دي:

۱-امام صاحب په خير القرون کې ؤ ۲-امام صاحب تابعي ؤ ۳-امام صاحب يو لوی مجتهد ؤ ۴-امام صاحب يو ښه محدث ؤ او هم دجرحې او تعديل دړومبنيو علماؤ څخه ؤ.

د پورتنيو ټکو د تفصيل نه مخکې يو حديث ذکر کوم چه امام بخاري او مسلم د أبوهريره نه روايت کړی او امام طبراني دقيس بن سعد او همدارنګه د عبدالله بن مسعود نه روايت کړی ټول فرمايي چه رسول الله فرمايلي: (لوکان العلم عند الثريا لتناوله رجال من ابناء فارس). او په بل روايت کې (لو کان الايمان عند الثريا لتناوله رجال من ابناء فارس) امام سيوطي رحمه الله د دې حديث لاندې فرمايلي: چه دا يو صحيح اصل دی چه اعتماد پرې کيږي په ابو حنيفه باندې د رسول الله دزيري، او همدارنګه دابو حنيفه فضيلت ثابتوي.

دمخکنيو ټکو تفصيل:

**اول: دا چه ابو حنيفه په خير القرون کې ؤ** نو دبخاري صحيح حديث دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: (خير الناس قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم)

**دوهم: دا چه امام صاحب تابعي ؤ** او د بعضې اصحابانو د ليدو او روايت شرف ورته حاصل ؤ، نو دتابعينو باره کې الله پاک په سورة التوبه کې فرمايلي:( وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ) او عبد بن حميد په خپل مسند کې د ابو سعيد الخدري نه روايت کړی چه رسو الله فرمايي: ( طوبی لمن رآني او لمن رآی من رآني او لمن رآی من رآی من رآني )

**دريم: دا چه امام صاحب مجتهد ؤ** ، نو په دې ټکي کې اختلاف دعلماؤ نشته، او مخکې مو وضاحت کړي چه دحماد فقيه د وفات نه ورسته په کوفه کې

دابو حنیفه جوګه بل څوک نه ؤ، همدا وجه وه چه افتا ته کیناست او دحماد شاګردان او دکوفې علماء پرې راټول شول. او ددې هرڅه دپاسه لا نور هم ګورو چه په امام صاحب څومره زیاتو ثقاتو علماؤ اعتماد وکړ او دهغه دمذهب تابعداران شول.

**څلورم: دا چه ابو حنیفه محدث ؤ**. نو ددې باره کې څو وضاحتونه کوم:

- طبیعي خبره ده چه أبو حنیفه محدث ؤ او هغه ځکه چه زمونږ دزماني یو فقیه ته په سلهاو أحادیث یاد وي او پرې پوهیږي، نو دا طبیعي خبره ده چه دتابعینو دزماني مجتهد ته به زمونږ دزماني فقیه نه ډیر أحادیث یاد ؤ، او بله دا چه مجتهد ته په کار ده چه کم نه کم د احکامو أحادیث چه تقریباً د ۴۰۰۰ خوا او شا په مقدار کې دي یاد وي، او دا ممکنه ده چه دهغې زماني یو ستر محدث او مجتهد به وي خو روایت به ورنه کم شوی وي، نو کم روایت ددې دلیل نه دی چه هغه فقیه نه دی، مونږ ګورو چه أبوبکر رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د بعثت د اولې ورځې نه تر وفات درسول الله پورې موجود ؤ خو مکرم أحادیث یې ټول سل خوا او شاه جوړیږي چه روایت شوي ورنه. امام مالک چه دامام صاحب د وفات نه ۲۹ کاله وروسته هم وفات شو او دهارون الرشید په خلافت کې هم ۹ کاله پاتې شو، چه په دغه وخت کې دعلم ازدهار وشو او وسایل یې زيات شو، او ۴۰ کاله یې د خپل کتاب موطأ په لیکلو تیر کړل خو بیا هم تقریباً ۷۰۰ أحادیث یې په کې روایت کړل.

- دکتور مصطفی سباعي په خپل کتاب (السنة ومکانتها في التشریع الاِسلامي) کې لیکلي: چه امام أبوبکر ابن أبي شیبه په خپل مصنف کې دامام أبو حنیفه هغه مسایل چه د أحادیثو سره مخالف راغلي ذکر کړي چه ټولې ۱۲۵ مسلې دي، سباعي صاحب وایې چه ددې معنی داده چه ددې نه علاوه نور مسایل یې دأحادیثو سره موافق دي، او په أرجح قول دغه مسلې ۸۳زرو ته رسیږي. نو ۱۲۵ د ۸۳ زرو په مقابل کې هیڅ هم نه دي، بله خبره داده که څوک د امام زیلعي کتاب (نصب الرایه) او یا د امام مرتضی زبیدي کتاب (عقود الجواهر المنیفه في أدلة مذهب الامام أبي حنیفه) او د أبو جعفر الطحاوي کتاب (شرح معاني الآثار) وګوري نو هغه ته په ډاګه پته لګیږي چه دامام صاحب مذهب څومره په صحیحو أحادیثو ولاړ دی او څومره مسایل د امام صاحب د أحادیثو سره موافق دي. د امام صاحب زمانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم زمانې ته نزدې وه هغه وخت کې د امام صاحب لاس رسی سنتو ته اسان ؤ البته امام صاحب د ډیر احتیاط نه کار اخیسته ځکه چه په هغه وخت کې ګمراه فرقو دروغ مروج کړي ؤ او په رسول الله پسې یې تړل.

او دا خبره هم غلطه ده چه بعضې خلک یې کوي چه أبو حنیفه دقیاس او عقل نه دمسلو په جواب کې کار اخستلو، دا ځنګه قیاس دی چه د اتیازره نه پورته مسلو کې دحدیثو سره موافق خیژي؟ ددې خو لا په هغه وخت کې امام صاحب وضاحت کړی

دی، امام مرغیناني په خپل سند د عبد الله بن مبارک نه روایت کړی فرمایي: کله چه أبو حنیفه حج ته لاړو نو په مدینه کې د أبو جعفر محمد الباقر بن علي الأصغر زین العابدین بن الحسین بن علي بن أبي طالب، سره میلاو شو ، أبو جعفر چا شکي کړی ؤ چه أبو حنیفه په قیاس فیصلې کوي او أحادیث یې پریښي، نو أبو جعفر پوښتنه وکړه: تاولې زما دنیکه رسول الله صلی الله علیه وسلم أحادیث پریښي او فیصلې په قیاس کوې؟ امام صاحب ورته وویل: الله دِ ما ددغه شان کار نه وساتي داسې کار زه نه کوم، خو کله چه أبو جعفر نه قانع کیدو نو أبو حنیفه ورڅخه درې پوښتنې وکړې ورته یې وویل: ۱- سړی کمزوری دی که ښځه؟ ابو جعفر وویل: ښځه نو ابو حنیفه ورته وویل: د سړي څو مره حق دی په میراث کې ستا دنیکه د دین مطابق او د ښځې څومره دی؟ نو ابو جعفر وویل: د ښځې برخه د سړي دبرخې په نیمه ده، نو أبو حنیفه ورته وویل چه په همدې ما هم فیصله کړې، که خبره دعقل او قیاس وی نو ما به ښځې ته پوره برخه ورکړې وی ځکه چه کمزورې ده، خو نه دا د دین فیصله ده. بله پوښتنه کې ورته وویل: ستا دنیکه په دین کې لمونځ ډیر بهتر دی که روژه؟ ابو جعفر وویل: لمونځ، بیا یې ورته وویل، چه ښځه د حیض په دوران کې لمونځ او روژه دواړه قضا کړي د کوم یو قضایي به راګرځوي؟ ابو جعفر وویل: د روژې، نو ابو حنیفه ورته وویل چه همدا زمونږ فیصله ده ستا دنیکه د دین نه مو راخیستې که مو په عقل فیصله کوله نو دلمونځ قضایي به مو لازمې کړې وی ځکه چه د روژې څخه بهتر دی. دریمه پوښتنه کې ورته وویل: چه بولې (میتیازې) ډیرې ګنده دي او که مني؟ ابو جعفر ورته وویل چه: میتیازې، بیا یې ورته وویل چه ستا دنیکه په دین کې د میتیازو په وتو اودس لازمي کیږي او د مني په وتو غسل، که مونږ په عقل او قیاس فیصله کوله نو په مني به مو اودس کړی ؤ او په میتیازو غسل، خو نه داسې هیڅکله هم نه کوو ، ددې پوښتنو وروسته أبو جعفر قانع شو او خوشحاله شو او د أبو حنیفه اکرام یې وکړ.

خو ددې معنی دا نه ده چه أبو حنیفه صاحب بالکل قیاس نه دی کړی، بلکه هغه مسایل چه ده ته په کې صحیح حدیث ندې رسیدلی هغې کې یې قیاس کړی او دا په هغه صورت کې چه دصحابې فتوا یې هم نه وي موندلې، او قیاس دهغې زمانې ټولو مجتهدینو څلور مشهورو امامانو او ټولو غټو علماؤ کړی. دا نه چه صرف امام أبو حنیفه کړی.

- شیخ أحمد مختار رمزی چه دشام یو عالم دی په خپل کتاب سیر أعلام المحدثین کې د امام أبو حنیفه د حدیثی مرویاتو تعداد د سنتو په مصادرو کې هریو نه ځانته ځانته ذکر کړی، چه ټول راجمع کړو نو ۸۴۹ أحادیثو ته رسیږي. (سیر أعلام المحدثین (ص/۶۰۳)
- چه دغه عدد د امام مالک دموطأ داحادیثو څخه زیات دی ځکه چه په موطأ کې مرفوع أحادیث خوا اوشا ۲۰۰ ته رسیږي.
- د امام صاحب نه ۱۷ مسانید روایت شوي او هر یو مسند کې کافي حد ته أحادیث روایت شوي، خو چه کوم مسند تر نن ورځې پورې زمونږ سره په ډیر ښه ترتیب کې موجود دی، هغه په مسند

الحارثي مشهور دی چه قاضي حصکفي مختصر کړی او تقريباً ۵۲۴ أحاديث پکې موجود دي، او ددې مسند فقهي ترتيب او شرح ډيرو علماؤ کړې ده چه په هغې کې امام علي قاري امام سندي امام سنبهلي او داسې نورو.

او د امام صاحب نه روايت شوي مسانيد په کې ټول راجمع شوي هغه دخوارزمي مسند دی چه په حيدر آباد دکن کې سل کاله مخکې ۱۳۳۲ه کې چاپ شوی چه دوه غټ غټ جلدونه لري.

نو فلهذا امام صاحب يو ښه محدث ؤ او د اوسه پورې علماء دامام صاحب په أقوالو دعلوم الحديث او جرحې او تعديل په مختلفو مسلو کې استدلال کوي.

✓ او داچه دجرحې او تعديل د ړومبنيو علماؤ څخه دی ، نو ددې فن په کتابونو کې ګورو چه امام صاحب د عطاء بن ابي رباح باره کې فرمايي: ما رآيت اوثق منه، خو د جابر الجعفي باره کې بيا وايي: ما رآيت اكذب منه. معجم الفاظ الجرح والتعديل لسيد عبد الماجد الغوري(ص/۱۲)

✓ دريمه نقطه: د امام ابوحنيفه رحمه الله باره کې تعديل او توثيق

د امام صاحب باره کې توثيق او تعديل ډيرو علماؤ کړی او دمختلفو طبقو علماؤ کړی، او دغه تعديل او توثيق په پوره وضاحت سره په لاندې ترتيب ذکر کوم:

۱- دجرح او تعديل د فن د متقدمينو محققينو أقوال

۲- دمتأخرينو محققينو أقوال

۳- د معاصرينو شيوخو أقوال

**أول: د متقدمينو أقوال:**

(امام ابن معين فرمايلی: كان أبو حنيفه ثقة لايحدث الا بمايحفظه..) سير أعلام النبلاء للذهبي (۶/۳۹۵).

(امام أبو يوسف فرمايلي: ما رأيت أحدا أعلم بتفسير الحديث من أبي حنيفة) تاريخ بغداد(۱۳/۳۴۰) ۹ (۱۳/۳۴۲) ۱۰(۱۳/۳۴۵)

(امام ابن المبارک فرمايلي: كان أبو حنيفة أفقه الناس۹) (امام شافعي فرمايلي: الناس فی الفقه عيال علی أبی حنيفة۱۰) (امام علي بن عاصم فرمايلي: لو وزن علم أبي حنيفة بعلم أهل زمانه لرجح عليهم) الفقيه والمتفقه(۲/۷۳)

(امام سفيان الثوري فرمايلي: كان أبوحنيفة أفقه أهل الأرض في زمانه) سير أعلام المحدثين(ص/۶۲۵)

(امام يحيى بن سعيد القطان فرمايلي: والله ماسمعنا بأحسن من رأي أبي حنيفة وقد أخذنا بأكثر أقواله) سير أعلام المحدثين(ص/۶۲۵)

(امام أبو داود فرمايلي: كان اماما) تذكرة الحفاظ(۱/۱۲۷)

(امام عبد الرحمن بن مهدي فرمايلي: كان أبو حنيفة قاضي قضاة العلماء) سير أعلام المحدثين(ص/۶۲۵) ۱۴(ص/۶۲۳)

(أبو عمرو بن العلاء فرمايلي: العلم علم أبي حنيفة ومانحن فيه أيسر۱۴)

**دوهم: د متأخرينو أقوال**

(امـام ابـن كثيـر فرمـايلي: الامـام أبو حنيفـة فقيـه العراق وأحد أئمة الإسلام، والسادة الأعلام، وأحد أركان العلماء) البداية والنهاية (۱۰/۱۱۰)

(امام ابن العماد فرمايلي: كان من أذكياء بني آدم) شذرات الذهب (۱/۲۲۸)

(امام ذهبي په تذكرة حفاظ الحديث كې ذكر كړى او فرمايلي دي: كان فقيه الملة وعالم العراق إماما ورعا عالما عاملا متعبدا كبير الشأن) تذكرة الحفاظ(۱/۱۲۷)

(امـام ابـن حجـر فرمـايلي: امـام وفقيـه مشـهور) تقريب التهذيب(۲/۵۶۳)

(امام سيوطي په طبقات الحفاظ كې ذكر كړى) طبقات الحفاظ(ص/۲۷)

### ✓ دريم: د معاصرينو أقوال

معاصرين دحديثو د باب ماهرين على اختلاف مذاهبهم دامام صاحب د توثيق په حق كې دي، او دا ځكه چه هر عالم د امام صاحب باره كې هر اړخيزه مطالعه وكړي اخر همدې نتيجې ته رسيږي.

چه امام صاحب اوثق الثقات دى. د امام صاحب د توثيق او تثبت په حق كې د معاصرو شيوخو نه دا لاندې يو څو علماء ذكر كوم:

الشيخ مصطفى سباعي/ الشيخ أبو زهرة / الشيخ عبد الفتاح أبو غده / الشيخ شعيب الأرنووط/ الشيخ أحمد مختار رمزي/ الشيخ ابن عثيمين/ الشيخ ابن باز/ الدكتور وهبه الزحيلي.

### ✓ د پورتنيو أقوالو وضاحت

لكه څرنګه چه معاصر شيوخ دامام صاحب باره كې دې نتيجې ته رسيدلي چه امام صاحب ثقه دى او همدا د پورتنيو اقوالو نچوړ دى، اګرچه عمومي نظر دغې اقوالو ته وشي او همدارنګه دامام صاحب روايات په نظر كې ونيول شي او دامام صاحب فضيلت ته نظر وشي نو دا ثابتيږي چه امام صاحب ډير ثقه او بلكه دثقاتو په سر كې دى.

خو ثقه څه ته وايي؟

د محدثينو په نزد (ثقه) دتوثيق دألفاظو يوه مرتبه ده هغه چا ته يې استعمال كيږي چه د هغه عدالت او ضبط پوره وي. دعدالت باره كې علماء وايي چه دا يو داسې ملكه ده چه انسان ته تقوى او مروءت وركوي. تقوى ځان ساتل دي دهر مذموم شرعي نه، او مروءت ځان ساتل دي دهر مذموم عرفي نه. او ضبط د راوي حفظ ته وايې چه يا يې خپل أحاديث په كتاب كې ساتلي وي او يا په سينه كې. نو كله چه امام صاحب ثقه راوي شو مطلب دا چه هم يې عدالت پوره دى او هم ضبط.

### ✓ څلورمه نقطه: د امام ابو حنيفه رحمه الله باره كې جرحه

بعضې علماؤ په امام صاحب جرحه كړې چه دهغوى دجملې نه: امام بخاري په خپل كتاب التاريخ الكبير كې فرمايي: كان أبو حنيفة مرجئاً سكتوا عنه. التاريخ الكبير (۸/۸۱)

امام نسائي په خپل كتاب الضفاء

والمتروكين كې فرمايي: ليس بالقوي في الحديث. الضفاء والمتروكين(ص/۲۳۳)

همدغه نظر دامام عقيلي او امام ابن عدي دى، امام ابن حبان په خپل كتاب المجروحين كې او په بعضې نورو كتابونو كې ليكلي: لم يكن الحديث

صناعته وكان يقول بالِارجاء... المجروحين(۲/۳۲۱)

امام خطيب بغدادي هم ديته ورته جرحه کړې او هم يې متهم کړی په قلة الروايه باندې. تاريخ الخطيب (۱۳/۴۴۴)

امام ابن خلدون هم په خپله مقدمه کې ليکلي چه يقال: بلغت روايته سبعة عشر حديثا.

✓ پينځمه نقطه: د جرح او تعديل د تعارض دضوابطو په رڼا کې د تعارض ختمول

کله چه مونږ د امام صاحب باره کې توثيق وليده او بيا دهغې نه وروسته مو نظر د جارحينو په جرحه ولګيده نو اوس پکار ده چه دغه تعارض ته د جرح او تعديل د قواعدو په رڼا کې وګورو. نو دا به په لاندې شکل وي:

**اول**: د جرح او تعديل علماء فرمايي: کله چه د يوه راوي باره کې جرحه او تعديل دواړه ثابت شي نو د تعارض د ختمولو په خاطر تعديل په هرصورت کې په مجمله جرحې مقدم وي.

نو که مونږ ددې قاعدې په رڼا کې وګورو دامام صاحب باره کې جرحه ټوله مجمله ده مفسره نه ده، نو فلهذا تعديل پرې مقدم دی، نو ثابت شوه چه امام صاحب ثقه دی.

**دوهم**: د جرح او تعديل علماؤ په نزد توثيق او تعديل په درې څيزونو ثابتيږي او هغه:

۱- په علم کې شهرت ۲- د جرح او تعديل د علماؤ توثيق ۳- د ثقاتو روايت.

اوس که امام صاحب ته وګورو هم په علم کې شهرت لري او هم په سلهاؤ علماؤ دهغه توثيق کړی چه دهغې جملې نه ما يو څو أقوال صرف ذکر کړي، او هم ورنه ثقاتو لکه محمد بن الحسن او ابن المبارک او أبو يوسف او داسې نورو روايت کړی. نو فلهذا دامام صاحب توثيق په دې قاعده ثابت دی.

**دريم**: د جرح او تعديل دعلماؤ په نزد جرحه نه قبليږي په باره دهغه چا کې چه دهغه په علم کې شهرت او امامت ثابت وي. نو کله چه امام صاحب په علم کې غټ شهرت حاصل کړی او امامت يې ثابت دی، نو دده باره کې دجارحينو جرحې ته اعتبار نشته. او که دې جرحې ته اعتبار شي نو بيا به دابن حزم حکم په امام ترمذي باندې منو چه وايي مجهول دی، او او دابن أبي ذئب به په امام مالک باندې منو چه وايې ضعيف دی. او داسې د نورو سترو عالمانو باره کې بعضې نورو کومه جرحه کړې خو ددې قاعدې په رڼا کې اعتبار ورته نشته.

**څلورم**: د جرح او تعديل علماؤ په نزد جرح په درې جوانبو کيږي: يا په عدالت دراوي يا په ضبط دراوي او يا داچه راوي نه به روايت دومره لږ شوی وي چه هغه لږ روايت په وجه مجهول وي.

نو که مونږ وګورو دامام صاحب عدالت په اتفاق ثابت دی. او د ضبط باره کې ورته ابن العماد اذکی بني آدم وايي، او ابن معين وايي چه: لا يحدث الا بما يحفظ. او روايت خو دامام صاحب نه دومره شوی چه د هغه وخت دمحدثينو نه په کې کم ندي او مخکې يې ما پوره وضاحت کړی. نو ددې قاعدې په رڼا کې دامام صاحب باره کې جرحه غير معتمده

ده او تعدیل أصل دی. ضوابط الجرح والتعدیل للکتور عبد العزیزمحمد بن ابراهیم العبد اللطیف.

✓ شپږمه نقطه: د امام صاحب باره کې

## دجرحې اساسي عوامل:

**اول**: دامام بخاري جرحه:

امام بخارې په امام صاحب جرح په خپل کتاب التاریخ الکبیر کې کړې، چه دغه کتاب امام بخاري په ۱۸ کلنۍ کې په مدینه منوره کې ولیکه، چه په دغه وخت کې عامه وضعه په مدینه کې داهل الرأي او اهل الحدیث ترمینځه اختلاف ؤ. له بله طرفه په دغه وخت کې امام بخاري مجتهد نه ؤ او دامام شافعي دمذهب تابع ؤ او همدارنګه دامام حمیدي سره یې ناسته پاسته وه چه هغه داحنافو سره سخت مخالف ؤ، او دامام بخاري په قول امام صاحب مرجئي ؤ، او دا یوه غټه جرحه ده ځکه چه دغه فرقه خو ګمراه فرقه وه.

خو حقیقت دا دی چه امام صاحب هیڅکله هم ددغې فرقې په عقیده نه ؤ، دې فرقې خو به ویلی: چه لاتضر مع الاِیمان معصیة ولاتنفع مع الکفر طاعة.

أیا چه څوک دامام صاحب نه ډیر لږ هم خبر وي دا ویلي شي چه دهغه په نزد لا تضر مع الایمان معصیة؟؟؟؟؟؟؟؟؟؟

خو البته مشکل چه په کوم ځای کې ؤ نو هغه دا ؤ چه دامام صاحب په وخت کې معتزله خواره ؤ او هغوی عمل دومره په ایمان کې داخل کړی ؤ چه مرتکب دګناه کبیرې به یې جهنمې ګڼلو او ویلې به یې چه خالد مخلد به وي په جهنم کې او هغوی ددې ایات مخالفت کولو چه الله فرمایي: (ان الله لایغفر أن یشرک به ویغفر مادون ذلک لمن یشاء) نو امام صاحب په هغوی باندی رد وکړ او د ایمان تعریف یې داسې وکړ چه: اقرار باللسان وتصدیق بالقلب. عمل یې په کې داخل نه کړ. نو کله چه بیا دامام شافعي زمانه وه هلته مرجئه پیدا شو او هغوی عمل ته هیڅ اهمیت نه ورکولو ویل به یې چه: لا تضر مع الایمان معصیة ولاتنفع مع الکفر طاعة. نو امام شافعي دهغوی جواب دایمان په تعریف کې وکړو ویې فرمایل چه: الاِیمان اقرار باللسان وتصدیق بالقلب وعمل بالجوارح.

نو په دغه وخت کې له یوه طرفه امام بخاري دامام شافعي په مذهب ؤ او له بله طرفه امام بخاري د مرجئه فرقې په زمانه کې ؤ، نو د امام صاحب تعریف ورته ددغې فرقې دفکر سره برابر ښکاریده حال دا چه دامام صاحب په زمانه کې دا فرقه نه وه، او ددې نه علاوه امام بخاري دحمیدي سره ناست ولاړ ؤ چه هغه هم داحنافو سخت مخالف ؤ د مکتب فکر او منهج په وجه، نو دا څه وجوهات ؤ چه ددې په بنا امام بخاري دیته اړ شو چه په امام صاحب دغه حکم ولګوي، خو دا خبره پته پاتې نشوه او تاریخ ثابته کړه چه امام صاحب مرجئي نه ؤ.

او دا چه بخاري او مسلم دامام أبو حنیفه احادیث په خپلو کتابونو کې نه دي روایت کړې، دا صرف دامام أبو حنیفه سره داکار ندې شوي، هغوی خو دامام شافعي هم یو حدیث ندی روایت کړی، او بخاري چه دامام أحمد سره شاګرد هم پاتې شوی خو په خپل صحیح کې یې دهغه دوه حدیثونه صرف روایت کړې. امام مسلم دبخاري نو یو حدیث هم

ندی روایت کړی سره ددی چه مسلم یې ډیره موده شاګرد ؤ. نوکله چه داسې ده ددې معنی دا نده چه دغه امامان چه شیخینو ترې روایت ندې کړی خدای مکه ضعفاء دي، او یا دا چه که شیخین چرته دضعفاؤ نه روایت وکړي نو دوی به هم ضعفاء شي، امام ابن حجر په هدي الساري کې او سیوطي په تدریب الراوي کې فرمایلي: چه یوازې امام بخاري په خپل صحیح کې د ۸۱ مبتدعینو څخه روایت کړی.

**دوهم**: د امام نسایی او ابن عدي او عقیلي او ابن حبان جرحه:

تقریباً دغه پورتني علماء د امام صاحب په جرحه کې دامام بخاري مقلدین دي، او بله دا چه امام نسائي که جرحه هم کړي خو دامام صاحب نه یې په خپلو سننو کې روایت هم کړی او جرحه یې هم مجمله ده. همدارنګه د عقیلي او ابن عدي جرحه مجمله ده او ابن حبان د جرح او تعدیل دعلماؤ په نزد په جرح کې متشدد دی او په تعدیل کې متساهل دی لکه دعقیلي او ابن عدي په څیر نو له دی کبله دهغه جرحه او تعدیل د دې فن د ماهرینو په نزد اعتبار نه لري.

**دریم**: دخطیب بغدادي جرحه:

دده جرحه کې امام صاحب ته د لږ روایت

نسبت شوی ، خو بیا هم علماء فرمایې چه بغدادي رحمه الله شافعي مذهبه ؤ او خپل مذهب نه یې سخته دفاع کوله او له بله پلوه یې په احنافو او حنابله علماؤ سختې نیوکې کولې. او که نه حقیقت خو دادي چه دامام صاحب احادیث ډیر زیات ؤ.

امام ابو زهره رحمه الله دامام صاحب په توثیق کې ډیر اوږد تفصیل کړی چه یوه خبره یې داهم کړې:

كان أبو حنيفة له من قوة الشخصية ما وجه به الفقه توجيهًا جاوز حلقة درسه؛ بل تجاوز إقليمه إلى غيره من الأقاليم الإسلامية، فتحدث الناس بآرائه في أكثر نواحي الدولة الإسلامية وتلقاها المخالف والموافق، فاستنكرها المخالف، وناصرها الموافق.

**څلورم**: دامام ابن خلدون نقل په قلة الرواية کې چه امام صاحب ټول ۱۷ حدیثونه روایت کړي.

اوله خو دا چه ابن خلدون دغه نقل په (يقال) دتمریض په صیغه کړی، نو ډیر مضبوط نه دی ، بله داچه ابن خلدون دد غې روایت نه وروسته تعلیق داسې کړی: وقد تقوّل بعض المبغضينِ الى ان منهم من كان قليل البضاعة فى الحديث فلهذا قلت روايته، ولا سبيل الى هذا المعتقد فى كبار الأئمة. نو ابن خلدون رحمه الله په خپله ددغې نقل سره موافق نه دی.

او بله داچه د ابن خلدون د نقل منشأ کیدای شي داوي چه دامام صاحب نه خو ټول ۱۷ مسانید روایت شوي دي نو ناقل په دې غلط فهمۍ کې واقع شوی چه که دا چیرته ۱۷ احادیث دي.

او کیدای شي منشأ یې داوي چه امام محمد بن الحسن په موطأ کې دامام صاحب نه ۱۷ حدیثونه روایت کړي او هغه یې دامام مالک أحادیثو ته ور اضافه کړي، نوداهم ممکنه ده چه ناقل په دې غلط فهمۍ کې واقع وي، چه دامام صاحب همدغه ۱۷ أحادیث دي او نور نشته

خو پته دې پاتې نه وي چه امام صاحب په روايت دحديثو کې ډير زيات احتياط کولو ، ځکه چه په هغه وخت کې په کوفه کې ګمراه فرقې ډيرې وې او احاديث به يې وضع کول، نوله دې کبله امام صاحب دهر چانه حديث نه أخستو او دا يوه وجه هم وه چه هغه ګمراه فرقو والا چه په سر کې يې شيعه دي هغوى په امام صاحب تور ولګاوه چه دا حديث پريږدي او روايت يې لږ دى او دمسلو په حل کې قياس استعمالوي ، خو مخکې مونږ دابو جعفر سره دامام صاحب قصه ذکر کړې، چه شيعه فرقې دغه خبر حتى مدينې ته ورسولو او ترهغې چه تحقيق ته خبر رسيده نو په امام صاحب ډيرو علماؤ عجيبه عجيبه حکمونه ولګول.

خو الحمد لله په اخره کې حقيقت ثابت شو ، او محقيقينو علماؤ لکه دذهبي او ابن حجر دا ثابت کړه چه امام صاحب اوثق الناس دى.

✓ اومه نقطه: د پورتني تحقيق نه وروسته ، د حديثو په ميدان کې دامام صاحب حکم.

کله چه دامام صاحب باره کې توثيق د کبار العلماء نه ثابت شو او دا هم ثابت شوه چه امام صاحب کې دعدالت ټول شروط په غټه کچه برابر دي، او کله چه دا برابر شي نو بيا ددغسې عالم باره کې جرحه غير معتبره وي، او داهم ثابت شوه چه دامام صاحب باره کې جرحه مجمله ده او د مفسر تعديل په وړاندې دعلماؤ په نزد غير مقبوله ده، نو بيا په آخره کې دا ويلى شو چه امام صاحب يو ښه ثقه محدثؤ ډير احاديث يې روايت کړيؤ چه دهغه وخت دمحدثينو نه يې روايت کم نه دى، او دعلماؤ په اتفاق مجتهد ؤ ، همدارنګه د ټولو په نزد دزهد او تقوى يوه نمونه وه ، او حافظه خو يې دومره مضبوطه وه چه امام ابن العماد ورته د اذکياء بني آدم لقب ورکړى.

✓ **اتمه نقطه**: په امام صاحب باندې د اوسنى زمانې جارحينو ته زما توصيه

د علماؤ احترام وکړئ ځکه چه هغوى زمونږ او درسول الله صلى الله ترمنځ واسطه ده، اوبيا چه يو عالم د سترو علماؤ او مجتهدينو څخه وي تابعي وي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ملګرو سره يې ناسته پاسته کړې وي، په اتفاق دعلماؤ تقي او متورع او دالله ولي انسان وي په کروړونو اتباع لري، نو ددسې عالم سره ډيره ګذاره پکار ده، ددوى تکليفولو باندې هم الله خپه کيږي، او هم دغه په کروړونو مسلمانان، په حديث قدسي کې راغلي چه الله فرمايې: من آذى لي ولياً فقد آذنته بالحرب. او بله دا چه په علماؤ او اهل الخير باندې غلط ظن هم ندى پکار ځکه چه (اِن بعض الظنِ اثم) که امام صاحب د حديثو ستر عالم نه وى نو دومره غټ تعداد کې سترو محدثينو لکه محمد بن الحسن الشيباني امام أبو يوسف امام أبو جعفر الطحاوي امام بدر الدين عيني امام علي القاري او په زرګونو نور علماؤ به ځانته بل امام اختيار کړى وى او د امام صاحب دمنهج نه به تير شوي وى.

وصلى الله على محمد وعلى آله وصحبه أجمعين



# نامتو مسلمان فاتحین

## د هرات او بلخ فاتح او نامتو تابعي حضرت احنف بن قیس رحمه الله

دوهمه برخه

مفتي حبیب الله قاسمي
داسلام دتاریخي پېښو څېړونکی او دیني علومو مدرس

یادونه : په تېره ګڼه کې مو د کابل فاتح او نامتو صحابي حضرت عبدالرحمن بن سمره رضی الله پېژندنه ولوستله ، اوس غواړو د هرات او بلخ فاتح او نامتو تابعي حضرت احنف بن قیس رحمه الله پېژندنه درته وړاندې کړو ، دغه نامتو تابعي د حضرت عمر رضی الله دخلافت په نېکمرغه او سپیڅلې دوره کې د اسلام بلنه زموږ هېواد تر جنوبي سیمو پورې د لومړي ځل له پاره راورسوله . ده وروسته هم په خراسان کې زیاتره فتوحات د نامتو صحابي او د بصري د والي حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه تر څارنې لاندې ترسره کړل اوپه خراسان کې یوڅه وخت دهغه ځای ناستی هم پاتی شوی دی ، ډېر ځیرک او د سیاسې تدبیر خاوند و.

**[۱] حضرت احنف بن قیس رحمة الله علیه داسلام په تاریخ کې څه دول وځلیده ؟**

د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت لومړۍ شپې ورځې وې ، د بنو تمیم قبیلې زړه ور اواو تجربه لرونکي ځوان غازیان د عرب جزیزې د ((احساء)) او((نجد)) ترمنځ پرتو سیمو څخه ډلې ډلې په ښکلیو اوځغاستونکو آسانو سپاره روان وو ، تیرې او پړ کیدونکې توري یې پر اوږو ځوړندوې دوی غوښتل په ((بصره)) کې د فارس له لښکر سره د عتبة بن غزوان رضی الله عنه ترمشري لاندې جنګیدونکي اسلامي لښکر سره یوځای شي ، په همدې ځوانانو کې یوهم زموږ حضرت احنف رح هم و

جګړه لاهم روانه وه دغه ځوانان له اسلامي لښکر سره یوځای شول ، یوه ورځ دجګړې نامتوقوماندان حضرت عتبه بن غزوان رضی الله عنه ته دحضرت عمر رضی الله عنه یو تازه فرمان راغی چې متن یې داسې و : ((ماته د خپل لښکر لس

تکړه ، هوښیار او د ښه زړه خاوندان مجاهدین را واستاوه چې زه ترې د جنګ د لومړیو لیکو حال واخلم او له ماسره چې کومې ښې مشورې دي هغه هم له دوی سره شریکې کړم)

حضرت عتبه رضی الله عنه له لارښوونې سره سم لس تنه تکړه او ځیرک مجاهدین په ښه کړل او بیایې مدینې منورې تـه د حضرت عمر رضی الله عنـه د لیدنې لـه پـاره واستاول ، په دې لسو مجاهدینو کې یو هم حضرت احنف رحمه الله هم و .

دغه پلاوی چې حضرت عمر رضی الله عنه ته ورغی ، هغه یې تود هر کلی وکړ او له خواسره کښېنول ،بیایې له دوی څخه د خپلو او دغه راز د ولس د اړتیاوو په اړه پوښتنې وکړې ، ټول پلاوي پـه یوه خولـه داخبـره ورتـه وکـړه چې : د ولـس پـه اړتیـاوو خو تاسو ښـه پوهیږئ ځکه مسولیت یې تاسو تـه در په غاړه دی ؛ خو موږ به در ته خپلې اړتیاوې وړاندې کړو، بیا هریوه په خپل وار خپلې اړتیاوې وښودلې .

حضرت احنف رح د ټولو په پای کې خپلې خبرې ځکه وکړې چې تر ټولو کشر و ، نوموړي پـه خبرو کې د الله پـاک لـه ستاینې او لورینې بیانولو وروسته وویل :

((ای امیر المومنینه ! مصر ته چې د مسلمان کوم لښکر ولاړ هغـوی تـه بخملـې صـحراوې ، شـنې اوښایسـته ځمکـې ورسېدلې او د فرعون د دنګې مانۍ یې لاس تـه ورغلې .دغه راز هغه مسلمانان چې شام تـه ولاړل هغوی تـه هم د رومي امپراطورۍ دنګې مانۍ په لاس ورغلې او اوس پکې په ډیره خوښۍ شپې ورځې سبا کوي . دغه ډېر هغو مجاهدینو چې د ایران او فارس لور ته مخه وکړه هغوی هم ستر دریابونه ، شنه باغونه په برخه شول اودامهال د فارس د واکمنو له دنګو مانیو خوندونه اخلي. خو دایواځې زموږ قام دی چې دبصرې وچه ، ښوره اوشکلنه دښته یې په برخه رسېدلې ده چې نه شین بوټي اونه هم اوبه لري ، تل سپیره وي ،یوه لور تـه یې د ترخـو مـالګینو اوبـو سـمندر بهیـږي اوبـل لور تـه یـې وچـه اوسپیره شګلنه دښته پر ته ده .

ډیر قدرمن امیر المومنین ! ستاسو درانه خدمت تـه پـه ډیر درنښت دایو وړاندیز کووچې : زموږ د قام د خلکو غم وخوره ، دهغوی ژوند سینګار کړه داسې چې : تاسو د بصرې والي تـه لارښوونه وکړئ چې زموږقام تـه د خوږو اوبو یوه لویـه ویاله (نهر) وباسي څو زموږ خلک له خوږو اوبو ګټه واخلي ، او د دوی ژوي او کښتونه ترې خړوبه شي ، چې په دې سره بـه د هغوی اقتصادي حالت ښه شي او بې وزلي به یې هم له منځه ولاړه شي اودهرڅه پریماني به شي او د خوراکي توکو بیې بـه را ولویږي او تر ټولو ستره ګټه به یې داشي چې دوی بـه د الله پاک په لاره کې جهاد کولو له مخکې نور هم ښه چمتو شي ))

ددې ځوان خبـرې حضـرت عمـر رضـی الله عنـه ډیـرې ښـې ولګیدلې او خوند یې ور کړه اوځوان تـه یې وویـل : داځومره ښکلې او ګټورې خبرې دې وکړې ؟ پـه خدای قسم تـه خو دخپل قام مشر ښکارې .

له دې وروسته امیر المومنین پلاوي ته ډالۍ ور کړې او کله یې چې احنف رح ډالۍ وړاندې کړه نوموړي پـه درنښت سره امیر المومنین ته یووړاندیز داسې وکړ :

(( ای امیر المومنینه ! موږ ستره بیدیا او وچه دښته یواځې ددې له پاره نه پل کوله چې یوازې ډالۍ ترلاسه کړو ، ځکه زه ورسره ډیره لیوالیتـا نه لرم ؛بلکې لـه موږ سره یواځې د خپـل قـام د ناوړه حالت اندېښنه ده، کـه چیر تـه زموږ د قـام سـتونزه اواره کـړئ ؛ نوهغـه زموږ ستره موخـه ده او موږ تـه تر ټولو ستره او ارزښناکه ډالۍ ده.))

ددې خبرو په اورېدو دامیر المومنین رح نور هم ددې ځوان ځیرکتیا ته زیات په تعجب کې شو اوبیایې وویـل : ((ددې ځوان خبرې د ټولې بصرې د مشرتوب استازیتوب کوي او په نوموړي کې د مشرتوب نښې ښکارې )).

